# فهرس

شماره مضمون صفحه

# د الله په سپېڅلي نامه

اللهχ هغه ذات دی چې هغه وخت موجود وو چې هغه وخت هېڅ شی هم موجود نه وو او دا ټول موجودات به فناه کيږي او اللهχ هماغه ذات دی چې موجود به وي نو هغه وخت چې هېڅ شی په دنيا کې موجود نه وو نو اللهχ عرش پيدا کړو او د څه وخت او زمانې نه وروسته يې قلم پيدا کړو اللهχ قلم ته وويل : وليکه ... ! قلم وويل : څه وليکم يا رب؟ اللهχ ورته وويل : ټول هغه څه وليکه چې شوي دي او يا به وروسته کيږي تردې چې قيامت قائم شي او دا وليکه چې موږ هر شی په يوه خاصه اندازه پيدا کړي دي او په هغه وخت کې اللهχ هرڅه ليکلي دي او ددې وخت نه بيا د زمکې او اسمانونو او نورو مخلوقاتو پيداکېدل پنځوس زره کاله وروسته شوي دي .

د قلم نه پنځوس زره کاله وروسته اللهχ اسمانونه او زمکې په شپږو ورځو کې پيدا کړل د اسمانونو او زمکو د پيدائښت نه وروسته اللهχ غرونه ، بحرونه ، لمر سپوږمۍ ، ستوري او يو بل مخلوق اللهχ پيدا کړو چې جن ورته ويل کيږي جنياتو په زمکه کې فساد خپور کړو هغوی فسادونه کول کله کله به ملائکې راتلې هغوی ته به يې سزا ورکوله او کله به يې د څه وخت لپاره ځينې پداسې ځای کې بنديان کول چې دوی به له هغه ځای نه په اسانې سره نشوای راتلی نو ددې نه وروسته الله χ اجازه وکوله چې يو نوی مخلوق د پيدا شي او اللهχ فرښتو ته وويل : چې زه په زمکه کې خپل خليفه پيدا کوم اللهχ د هغه وخت په واقعه کې فرمايي :

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلاَئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الأَرْضِ خَلِيفَةً .[1]

ترجمه :او (ياد كړه اى محمده !) هغه وخت چې وويل پروردګار ستا پرښتو ته چې بېشكه زه ګرځوونكى يم په ځمكه كې د يوه خليفه .

څرنګه چې ملائكو مخكې په زمكه كې پيريان ليدلي وو چې هغوى په زمكه كې پيدا كړل شوي وو هغوى به فسادونه كول او له يو بل سره به يې جنګونه كول نو فرښتو اوس اللهχ ته وويل : چې دا نوى مخلوق به هم همداسې وي لكه پېريان اللهχ فرمايي :

قَالُوا أَتَجْعَلُ فِيهَا مَنْ يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ .[2]

ترجمه :نو وويل فرښتو آيا ګرځوې ته په ځمكه كې هغه څوک چې فساد به كوي په دى زمكه كې او تويوي به (په ناحقه سره) وينې.

نو فرښتې بيا هم په وېره كې وې چې په زمكه كې بيا فسادونه شروع شي نو اللهχ ته يې ويل : كه چېرته ته نوى مخلوق ددې لپاره پيدا كوې چې هغه ستا عبادت وكوي نو موږ شته يو ستا عبادت ته موږ ستا عبادت كوو او ورته ويل يې :

ونَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ .[3]

ترجمه :او موږ تسبيح وايو سره د ثنا ستا او نسبت د پاكي كوو تاته.

---

[1] سورة البقرة آية ٣٠

[2] سورة البقرة

[3] سورة البقرة

اللهχ د دوی په ځواب کې وویل :

إِنِّي أَعْلَمُ مَا لاَ تَعْلَمُونَ .[1]

ترجمه :بېشکه زه پوهېږم په هغه اسرارو چې تاسې پرې نه پوهيږئ .

کله چې اللهχ د حضرت آدم ν د پيدا کولو اراده وکوله نو فرښتو ته يې امر وکولو چې هغه لاړې شي او د زمکې د مختلفو ډولونو خاورې څخه د خاوره را ټوله کړي نو فرښتو چې هغه ځينې توره ، ځينې سپينه ، سره، زېړه او داسې په مختلفو رنګونو کې خاوره يې را ټوله کړه او د همدې امله دي چې د انسانانو رنګونه سره بدل بدل دي او همدارنګه نه يوازې رنګونه بلکه طبيعتونه هم بدل شول نو يو انسان سپين شو ، يو تور ، يو سور، يو زيړ شو همدارنګه يو سخت طبيعته ، يو نازک طبيعته او يو د نېکو اخلاقو او يو د بدو اخلاقو خاوند شول کله چې هغه خاوره را ټوله کړل شوه هغه لنده کړل شوه او بيا د ډېر وخت لپاره همداسې پاتې شوه چې هغه خرابه شوه د هغې بوی بدل شو او هغه ښويه خاوره شوه بيا ورڅخه انسان جوړ کړل شو اللهχ فرمايي :

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِنْ صَلْصَالٍ مِنْ حَمَإٍ مَسْنُون.[2]

ترجمه :او (ياد کړه) هغه وخت چې وويل رب ستا ملائکو ته چې بېشکه زه پيدا کوونکی يم د يوه بشر له کودرو کړنکېدونکو وچو څخه (چې جوړ شوی دی) له تورې خټې سخا شوې څخه .

---

[1] سورة البقرة
[2] **سورة الحجر**

ددې جوړښت نه وروسته څو کلونه پروت وو روح پکې نه وو او ملائکو ته امر شوی وو چې :

فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِنْ رُوحِي فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ . [1]

ترجمه :نو کله چې برابر مې کړ دغه او پوه مې کړ په ده کې له خپله روحه (او دی پرې ژوندی شو) نو پریوځئ تاسې ده ته په دې حال کې چې سجده کوونکې یئ.

نو ملائکو ددې انتظار ویستو چې کله به پدې کې روح اچول کیږي او له بله پلوه به یې د هغه مراقبه هم کوله او څارلو به یې او حیران وو چې دا به څنګه مخلوق وي او دا به څنګه کار کوي او څنګه عملونه به کوي یوازې فرښتې نه بلکه ابلیس به هم ورته راتلو ګرد به ترې تاوېدلو او دننه به پکې ننوتلو او بیا به ترېنه بېرته ووتلو او ورته کتل به یې یو ډول وېره به یې ترېنه کوله ملائکو ته یې ویل : دده مینځ خو خالي دی تاسې ددېنه مه ډاریږئ دا چې هرڅنګه وي که زه وربانديې مقرر کړل شوم هلاک به یې کړم خو فرښتې چې د اللهχ د هر امر تابع دي په خاموشي سره یې د هغې صحنې انتظار وېستو چې په ده کې روح واچول شي .

آخر د انتظار لحظې ختمې شوې هغه وخت راغلو چې اوس به په آدم ν کې روح اچول کیږي ټولو کائناتو انتظار وېستو د انسان د تاریخ شروع کېږي چې د آدم ν په سر کې روح راغلو سترګې مبارکې یې خلاصې کړې یو طرف او بل طرف ته یې وکتل څه یې ولیدل؟ د جنت میوې او د جنت زندګي ده روح یې پوزې ته را ورسېدو و پرنجېدو ملائکو وربانديې اواز وکولوووایه الحمد لله

[1] سورة الحجر آية ٢٩

حضرت آدم v الحمد لله وویل ورته الله‌χ وویل یرحمک ربک بیا یې روح معدې ته ورسېدو د جنت د میوو شوق ورکې پیدا شو غوښتل یې چې پسې پاڅیږي سره ددې چې پدې وخت کې دده پښو ته لا روح نه دی ور رسېدلی ددې امله خو الله‌χ فرمایي : **خُلِقَ الإنْسَانُ مِنْ عَجَلٍ .** [1]

ترجمة : انسان له بیړې نه پیدا شوی دی

کله چې روح پکې پوره شو آدم v پاڅېدو قدم وهل یې شروع کړل او فرشتې ټولې انتظار کوي چې اوس به څه کوي الله‌χ ورته وویل : آدمه ورشه هغه د ملائکو ډلې ته وو وایه : **السلام علیکم** حضرت آدم v هلته ورغلو ورته یې وویل : **السلام علیکم** ملائکو ورته وویل : **وعلیکم السلام ورحمة الله** و برکاته بیا الله‌χ ورته وویل : آدمه دا ستا او ستا د اولادې سلام او تحیة ده نو پدې کې یو آدم ته ور وښودل شول چې دا به ستاسې سلام وي او بل د فرښتو او انسان په مینځ کې یو ډول الفت پیدا شو .

او دحضرت آدم v د پیدا کېدو په وخت کې په هماغه وخت الله‌χ ده ته ډېر لوی علم ورکړی وو او د ټولو شیانو نومونه یې ور زده کړي وو لکه الله‌χ چې فرمایي :

**وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلَائِكَةِ فَقَالَ أَنْبِئُونِي بِأَسْمَاءِ هَوولَاء إِنْ كُنتُمْ صَادِقِينَ(31) 2**

ترجمه :او وښودل (الله) آد م ته نومونه ټول (د پاسنیو او ځمکنیو شیانو) بیا ئې وروړاندې کړل

[1] سورة الانبیاء آیة ۳۷
[2] سورة البقرة

هغه ټول شیان فرښتو ته وویل خبر راکړئ تاسې ماته په نومونو د دې شیانو سره که یئ تاسې رښتیا ویونکې.

خو دا کوم نومونه وو او د څه شي نومونه يې ورښودلي وو؟ حضرت عبد الله ابن عباس η فرمايي : د هر شي نومونه اللهχ ورته ښودلي وو چې دا بحر دی ، دا اور دی دا اوبه دي او همدارنګه د استعمال طريقې او د ژوند کولو لارې اللهχ ورته ښودلې وې .

نو ددې لپاره چې ملائکو ته ښکاره کړي چې حضرت آدم ν له دوی نه په علميت کې هم غوره دی نو ځکه يې ملائکو ته د امتحان په ډول وويل : چې ددې ټولو شيانو نومونه ماته ووایاست دوی په عاجزي سره ورته وويل :

لَا عِلْمَ لَنَا إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا إِنَّكَ أَنْتَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ(32) [1]

ترجمه :نشته هېڅ علم موږ لره مګر په هغه شي چې ښودلي دي تا موږ ته بېشکه ته هم دا ته ښه عالم او دښه حکمت خاوند ئې.

بيا اللهχ د حضرت آدم ν شا مسح کړه او په هغه باندې د آدم ν ټول اولاد تر قيامت پورې چې څومره پيدا کيږي پيدا شو چې مليارد ونه مخلوق وو زه ، ته او هر انسان په هغه وخت باندې پيدا شو او اللهχ ورته وويل : آيا زه ستاسې رب نه يم؟ دوی ټولو ورته وويل هو! ته زمونږ رب يې بيا يې ورته وويل : چې د قيامت په ورځ بيا ونه واياست چې دا موږ ته نه وه معلومه اللهχ

[1] سورة البقرة

د هغه وخت د واقعې په اړه فرمايي : وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِن بَنِي آدَمَ مِن ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنفُسِهِمْ أَلَسْتَ بِرَبِّكُمْ قَالُواْ بَلَى شَهِدْنَا أَن تَقُولُواْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا غَافِلِينَ [1] .

ترجمه : (او ياد كړه اى محمده !) هغه وخت چې واخيست رب ستا له بني آدمو څنې له شاګانو د دوى څخه اولاد ددوى او شاهدان يې كړل دوى پر ځانونو خپلو باندې ، (او وفرمايل الله دوى ته) آيا نه يم زه رب ستاسې ! وويل دوى (او اقرار ئى وكړ) هو! (ته رب زمونږ ئې) ګواه كړه موږ ستاسې خپل نفسونه ، (د دى جهته)چې و (نه) وايئ تاسې په ورځ د قيامت كې چې بېشكه موږ وو له دغه (توحيده) غافلان (نا خبران) .

نو چې كله په آدم ν كې روح واچول شو ټولو ملائكو د اللهχ د امر د تعميل په خاطر حضرت آدم ν ته د تعظيم سجده وكوله چې په سر كې يې جبريل ν او پاتې نورې ټولې فرښتې وې اللهχ فرمايي :

فَسَجَدَ الْمَلآئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ . [2]

ترجمه : نو سجده وكړه ملائكو ټولو د دوى تمامو .

پدې وخت كې چې ټولې فرښتې په سجده باندې پرتې وې يو مخلوق چې له فرښتو څخه نه وو لكن له فرښتو سره په يو ځاى كې وو هغه له سجدې نه ولاړ پاتې وو چې هغه ابليس وو چې د كبر ، كينې او شقاوت نه ډك وو اللهχ فرمايي چې ټولو فرښتو

---
[1] سورة الاعراف آية ١٧٢
[2] سورة الحجر آية ٣٠

سجده وکوله صرف ابلیس ونه کوله الله χ دا واقعه په بل ځای کې داسې فرمایي :

وَلَقَدْ خَلَقْنَاكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَاكُمْ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ لَمْ يَكُنْ مِنْ السَّاجِدِينَ(11)قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِنْهُ خَلَقْتَنِي مِنْ نَارٍ وَخَلَقْتَهُ مِنْ طِينٍ(12) قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُونُ لَكَ أَنْ تَتَكَبَّرَ فِيهَا فَاخْرُجْ إِنَّكَ مِنْ الصَّاغِرِينَ(13قَالَ أَنظِرْنِي إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ(14) قَالَ إِنَّكَ مِنْ الْمُنظَرِينَ(15)قَالَ فَبِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ(16)ثُمَّ لَآتِيَنَّهُمْ مِنْ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَانِهِمْ وَعَنْ شَمَائِلِهِمْ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ(17).[1]

ترجمه :او خامخا په تحقیق پیدا کړ موږ (پلار) ستاسې بیا صورت جوړ کړ موږ د (پلار) ستاسې بیا وویل موږ پرښتو ته چې سجده (د تحیت) وکړئ تاسې آدم ته .نو سجده وکړه دوی (ټولو) مګر ابلیس (سجده ونه کړه او) نه وو دی له سجده کونکو څخه . وویل (الله ابلیس ته) څه شي منع کړې ته (زما د حکم له تعمیل څخه)چې سجده دې ونه کړه کله چې امر (حکم) وکړ ما تاته ؟ وویل(ابلیس) زه غوره یم له آدمه ، چې پیدا کړی دې یم زه له اوره او پیدا کړی دی تا دغه (آدم v) له خټې څخه . وویل (الله ابلیس ته) نو کوز شه ! له دغه (آسمان یا جنت) څخه نو نه دی لائق تاته (ای ابلیسه ! دا کار)چې تکبر (لوئي نافرماني) وکړې ! په دې ځای کې نو ووځه (ترې) بېشکه ته ئې له ذلیلانو. وویل (ابلیس چې ای الله!) وګوره (مهلت راکړه) ماته (او مه مې وژنه) تر هغې ورځې (قیامت)چې مخلوق بیرته ژوندی کاوه شي(او له خپلو قبرونو پاڅاوه شي) وویل (الله) بېشکه ته له کتلو (مهلت ورکړو) شوو څخې

[1] سورة الأعراف

ئي (تر اولي نفخې پورې). وويل (ابليس) نو قسم دى په ګمراه كولو ستا ما لره (په سبب د آدم) چې خامخا به كينم زه هرومرو (خامخا) دوى ته (يعنى انسانانو ته د ښويولو لامله (له وجى) په لاره ستا كې (اسلام) چې سمه صافه ده. بيا خامخا راځم زه هرومرو (خامخا) دوى ته (په هر وخت) له وړاندې د دوى او له وروسته د دوى او له ښيو (طرفو) د دوى او له كيڼو (طرفو) د دوى او نه به مومې ته اكثر د دوى شكر ايستونكي (مؤمنان).

اللهχ ورته وويل:

قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا مَدْحُورًا لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ أَجْمَعِينَ(18). [1]

ترجمه: وويل (الله اى ابليسه) ووځه له دې ځايه په دغسې حال كې چې بد حال غمجن كړى شوى مردود رټلى شوى (لرى كړى شوى ئې له رحمته). (قسم دى) خامخا هر څوک چې متابعت وكړي ستا له دغو (انسانانو) خامخا ډک به كړم هرومرو (خامخا) جهنم (دوزخ) له تاسې (له تابعانو ستا او له تا له (ټولو).

همدارنګه اللهχ ورته وويل:

قَالَ اذْهَبْ فَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ فَإِنَّ جَهَنَّمَ جَزَاؤُكُمْ جَزَاءً مَوْفُورًا(63)وَاسْتَفْزِزْ مَنِ اسْتَطَعْتَ مِنْهُمْ بِصَوْتِكَ وَأَجْلِبْ عَلَيْهِمْ بِخَيْلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ (٦٤). [2]

[1] سورة الأعراف
[2] سورة الاسراء

ترجمه :(نو) وفرمايل (اللهχ) چې څه نو هر چا چې متابعت وکړ د تا له دوی نه (ای شيطانه) نو بېشکه دوزخ جزاء ستاسې ده جزاء پوره .او وخوځوه (راګير کړه) هغه څوک چې طاقت دې رسيږی پر هغه باندې له دوی نه په غږ (بلنه) خپله سره (فساد ته) او راکاږه (راټول کړه ګمراهي ته) پر دوی سواره خپل او پياده خپل او شريک شه له دوی سره په مالونو کې او په اولادونو کې.

اللهχ ورته وويل : هغه بندګان چې زما مخلص بندګان وي او په اخلاص سره زما عبادت کوي په هغوی باندې ستا هېڅ برلاسی نشته د هغوی سره ته هېڅ نشې کولی اللهχ فرمايي :

إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ وَكَفَى بِرَبِّكَ وَكِيلًا(65) .[1]

ترجمه :بېشکه (خاص) بند ګان څما چې دي نشته تاته (ای شيطانه) پر دوی هيڅ قسم غلبه حکومت قدرت، او کافي دی رب ستا (ای شيطانه) وکيل ساتونکی (د خالصو بندګانو خپلو له شره ستا).

دا ټولې سختې خبرې شيطان ته ددې امله کيږي چې هغه کبر وکولو ددې امله خو په احاديثو کې ډېر زيات احاديث دي چې انسان منع کوي چې په زړه کې يې يوه ذره د کبر راشي .

لکه په يو حديث کې رسول اللهγ فرمايي : هغه کس چې خپله جامه يې د کبر له امله اوږده کړه چې په لاره يې په ځان پسې را کش کوله اللهχ به د قيامت په ورځ ورته د رحمت په نظر نه ګوري .

[1] سورة الاسراء

حضرت آدم v جنت ته داخل کړل شو چې د جنت له میوو نه خوراک وکوي او د جنت له اوبو نه څښاک وکوي او د جنت له سیوري نه خوند واخلي او ورته وویل شول : ته به په دې جنت کې نه وږی کیږې ، نه به تږی کیږې او نه به درته څه بل مشکل مخې ته راځي خو ددې ټولو نعمتونو سره سره آدم v د یوازې توب احساس کولو او خپل ځان ورته ډیر یوازې ښکاره کیده و په همدې فکر کې ویده شو کله چې را ویښ شو ویې لیدل چې په خوا کې یې یوه ښځه ناسته وه پوښتنه یې تري وکوله ته څوک یې؟ زه یوه ښځه یم .... دلته چا راوستې؟ هغه چا پیدا کړم چې ته یې پیدا کړی یې ترڅو ستا تسکین ورسره وشي ... χ ددې واقعې په اړه فرمایي :

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا الله الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالأَرْحَامَ إِنَّ الله كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا . [1]

ترجمه : ای خلقو! (تل) وویریږئ له ربه خپله ! هغه (رب) چې پیدا ئې کړئ تاسې له نفسه یوه نه (چې آدم v دی) او پیدا ئې کړه له دې (نفسه) جوړه د ده (چې حواء ده) او خپاره (خواره) ئې کړل له دې دواړو څخه سړي ډیر او ښځې (ډیرې)

فرښتو د آدم v امتحان اخیستلو چې ده ته د هرشي نومونه زده دي کنه نو پوښتنه یې ورڅخه وکوله ددې نوم څه دی؟ حضرت آدم v ورته وویل حواء دوی ورته وویل : حواء ولې؟ حضرت آدم v ورته وویل : ځکه دا د حی (ژوندي) شي نه پیدا کړل شوه .

---

[1] سورة النساء آية ١

بیا اللهχ ورته وویل چې تاسې ښځه او خاوند پدې جنت کې ژوند کوئ اللهχفرمایي :

**وَقُلْنَا يَا آدَمُ اسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ .** [1]

ترجمه :او وویل موږ ای آدمه ! واوسیږه ! ته او ښځه ستا په جنت کې او خورئ ! له میوو د جنته (څه چې مو زړه غواړی) پریمانه هر چیرته مو چې خوښه وی او مه نژدی کیږئ دې ونې ته (دمیوی خوړلو د پاره) (که نژدې شوئ) نو شئ به له ظالمانو څخه.

اللهχفرمایي چې ما آدم ν ته دا هم وویل چې د شیطان نه ځان ساته دا ستا او ستا د مېرمن دښمن دی اللهχفرمایي :

**فَقُلْنَا يَا آدَمُ إِنَّ هَٰذَا عَدُوٌّ لَكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَىٰ .** [2]

ترجمه :پس وویل موږ ای آدمه بېشکه دا (ابلیس) دښمن ستا دی او (دښمن) د مېرمن ستا دی پس خبردار ودی نه باسي خامخا تاسې له جنته (په سبب د وسوسې او فریب) پس په مشقت کې به پرېوځئ .

اللهχحضرت آدم ν ته په جنت کې عامه اجازه وکوله چې کوم شي ته یې زړه کیږي استعمال دي کړي لکن صرف دې یوې ونې ته د نه ور نېږدې کیږي حضرت آدم او حضرت حواء O د اللهχامر ومنلو او له هغه

---

[1] سورة البقرة آية ٣٥
[2] سورة طه آية ١١٧

ونې ځخه يې ځان ساتلو لکن انسان نسيان زر کوي (خبره زر هېروي) او انسان قلب (زړه لري) هغه ډېر زر تقلب کوي او يو بل لوري ته اوړي له بله پلوه شيطان په آدم v پسې شو او هر وخت به يې وسوسه ور اچوله او ورته ويل به يې :

هَلْ أَدُلُّكَ عَلَى شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلَى .[1]

ترجمه : آيا وښيم تاته ونه د تل ژوندي پاتې کيدلو او په پاچاهي چې نه زائليږی (او تل پاتې کيږی).

حضرت آدم او حواء O پدې اړه ډېر فکر وکولو چې ددې ونې سره ځه وکوو کېداى شي دا رښتيا موږ ته په جنت کې همېشه والى راکړي بيا به موږ هر وخت همدلته يو او دا خبره هېره شوه چې الله χ خو دوى ته ويلي وو چې تاسې به دې ونې ته نېږدې هم نه ورځئ او دا يې هم ورته ويلي وو چې شيطان ستاسې دښمن دى ځان ترې وساتئ خو بالآخره يې اراده وکوله چې د هغه ونې ځخه به خوراک کوي او دواړو د هغه ونې ځخه خوراک وکولو چې دوى ورځخه منع کړل شوي وو حضرت آدم v تر اوسه پورې هغه ميوه پوره خوړلې نه وه چې د دوى له بدن ځخه جنتي جامې لرې شوې او دوى به منډې وهلې او د بوټو په پاڼو سره به يې د ځانونو د پټولو کوښښ کاوه او په همدې وخت کې د الله χ له لوري په دوى باندې له جنت نه د ښکته کېدو حکم صادر شو او په دوى باندې ږغ وشو چې دوى د له جنت ځخه زمکې ته ښکته شي الله χ د هغه وخت د واقعې په اړه فرمايي :

[1] سورة طه آية ١٢٠

فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ وَقُلْنَا اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَى حِينٍ (36) [1]

ترجمه :پس وښويول دوی دواړو لره شيطان له جنته (د ونې د نږدې والي په واسطه) نو ويې ايستل دواړه له هغه (عزت او راحت) څخه چې وو دوی په هغو کې .او وويل موږچې کوز شئ (له جنته ځمکې ته) حال دا چې ځينې ستاسې به له ځينو نورو سره دښمنان وی. او شته تاسې ته په ځمکه کې ځای د هستوګنې او اسباب د ګټې (فائدې) اخستلو تر يوه وخته پورې (چې اجل يا قيامت دی).

لدې ورځې نه په زمکه باندې د انسان ژوند شروع شو او حضرت آدم ν به په مسلسله توګه ژړل او د اللهχ نه به يې بښنه غوښته او څه کلمې اللهχ ورته وښودې هغه به يې تکرار کولې او اللهχ يې توبه قبوله کړه اللهχ فرمايي :

فَتَلَقَّى آدَمُ مِنْ رَبِّهِ كَلِمَاتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ (37)قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعاً فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدىً فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ فَلا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلا هُمْ يَحْزَنُونَ (38) . [2]

ترجمه :پس زده کړې آدم له پروردګار خپل څخه څو کلمې پس رجوع وکړه (الله) په هغه باندې(په رحمت سره)بېشکه هم دی دی ښه توبه قبلوونکی ښه مهربان (.بيا) وويل موږچې کوز شئ له جنته ټول پس که راغی تاسې ته له ما ځنې کوم هدايت پس هر څوک چې پيروي وکړي د هدايت زما پس نه به

---

[1] سورة البقرة آية ٣٦
[2] **سورة البقرة**

وي هېڅ قسم وېره پر دوی باندې او نه به وي دوی (هېڅېږي) چې خفه کيږي (او جنت ته به ځي) .

او لدې ځای نه په زمکه باندې د انسان ژوند شروع شو پدې ځای کې د ځينو خلکو شک لرې کوم او دهغوی ددې خبرې ځواب ورکول غواړم چې ځينې خلک وايي : که آدم v په جنت کې دا منع کړل شوې ميوه نه وای خوړلې نو موږ به اوس په جنت کې ژوند کاوه دا فکر او تصور غلط دی داسې نه ده بلکه انسان پيدا د زمکې لپاره دی آخر به هم انسان زمکې ته راتلو او تاسې ته هغه آيت در يادوم چې کله آدم v جوړ شوی نه وو اللهχ ملائکو ته فرمايلي وو چې زه په زمکه کې يو خليفه پيدا کوم ... نو معنی دا چې انسان پيدا د زمکې لپاره دی .

خو آدم v او حضرت حواء O دواړه زمکې ته را ښکته شول او يو څه وخت سره بېل وو بيا سره يو ځای شول او په زمکه باندې د انسانانو ژوند شروع شو .

# د انسان پیدائښت

پدې بحث کې موږ د انسان په پیدائښت باندې بحث کوو او پدې کې مختلف آیتونه راغلي دي هغه به ستاسې په وړاندې کېږدو او اللّٰهχ په قرآن کریم کې امر کړی دی چې هر انسان باید پدې اړه فکر وکوي چې له څه نه پیدا کړل شوی دی اللّٰهχ فرمایي :

**فَلْيَنْظُرِ الإنسان مِمَّ خُلِقَ * خُلِقَ مِنْ مَاءٍ دَافِقٍ . 1**

ترجمه : نو ودی ګوری انسان چې (اصلاً) له څه شي څخه پیدا کړل شوی دی .پیدا کړل شوی دی (انسان) له اوبو ټوپ وهونکیو څخه (په رحم کې) .

پدې اړه امام ابن کثیر ρ فرمایي چې ددې آیت نه په ښکاره سره معلومیږي چې د انسان د پیدائښت د مادې او د مراحلو په اړه پوهېدل د هر مکلف کار دی ځکه اللّٰهχ وربانديې امر کړی دی او امر تقاضا د وجوب کوي (یعني په هر انسان دا واجب دي چې پدې باندې ځان پوه کړي) .

د انسان پیدائښت د اللّٰهχ د قدرت له لویو نښو څخه ګڼل کیږي په خاصه توګه چې موږ پدې پوه شو چې د انسان په پیدائښت کې هره مرحله د اللّٰهχ د قدرت یوه بېله نښه ده او په قرآن کریم کې ددې مراحلو ذکر یوه معجزه ده او هغه خبرې چې د انسان د پیدائښت په اړه قرآن کریم ۱۴۰۰ کاله وړاندې کړې انسان د ډېرې ترقي وروسته ایله څو کاله وړاندې وربانديې پوه شوی دی او انسان چې

[1] سورة الطارق آية ٥ او ٦

پدې اړه مطالعه وکوي بیا باید د قرآن کریم دا آیت ور په زړه شي چې اللهχ فرمایي :

فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ. [1]

ترجمه : پس عبرت واخلئ تاسې ای خاوندانو د سترګو .

د انسان د پیدائښت په اړه چې بحث کوو نو اول به په هغه عناصرو کې خبرې وکوو له کوم نه چې انسان پیدا شوی دی .

١. الماء (اوبه)

په مخلوقاتو کې د پیري او فرښتې نه بغیر نور چې څومره ژوندي مخلوقات دي اوبه په هغوی کې بنیادي عنصر ګڼل کیږي نو انسان هم یو ژوندی مخلوق دی نو خامخا دده په وجود کې هم اوبه یو مهم عنصر دی اللهχ پدې اړه فرمایي :

أَوَلَمْ يَرَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنَاهُمَا وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ أَفَلَا يُووِمِنُونَ . [2]

ترجمه : آیا نه دي لیدلي (نه دي خبر) هغه کسان چې کافران شوي دي چې بېشکه آسمانونه او ځمکې وو دواړه سره نښتي (ضم پیوسته په اول کې) پس بېل کړل موږ دوی دواړه ،او پیدا کړي دي موږ له اوبو څخه هر شی ژوندی، نو آیا ایمان نه راوړي دوی.

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

[1] سورة الحشر آية ٢
[2] سورة الانبياء آية ٣٠

وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيرًا. [1]

ترجمه : او هم دغه (الله) هغه (ذات) دی چې پیدا کړی یې دی له اوبو نه بشر انسان پس ګرځولی ئې دی (خاوند د) نسب او سخر ګنې ، او دی رب ستا ښه قادر .

## ۲. التراب (خاوره)

د انسان په پیدائښت کې خاوره دوهم مهم او بنیادي عنصر دی چې د انسانانو پلار حضرت آدم ν ورڅخه جوړ شوی وو اللهχ فرمایي :

إِنَّ مَثَلَ عِيسَى عِنْدَ اللهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهُ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ . [2]

ترجمه : بېشکه مثل (صفت) د عیسی په نزد الله په شان د مثل (صفت) د آدم دی، چې (الله) جوړ کړ هغه (آدم) له خاورو څخه بیا ئې وویل ده (آدم) ته (بشر) شه ! پس (بشر) شو.

همدرانګه خاوره د هر انسان په پیدائښت کې مهم رول لري ځکه له خاورې نه ټول نباتات را شنه کیږي او هغه نباتات او خوراکونه انسان وخوري د هغه څخه په انسان کې وینه را پیدا شي او له وینې څخه نطفه پیدا شي او له نطفې نه د مور په ګېډه کې جنین پیدا شي نو ځکه یوازې د حضرت آدم ν په خلقت کې نه بلکه د هر انسان په خلقت کې خاوره مهم رول لري اللهχ هم فرمایي :

---

[1] سورة الفرقان آية ٥٥
[2] **سورة آل عمران آية ٥٩**

وَاللهُ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمْ أَزْوَاجًا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنثَى وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُعَمَّرٍ وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهِ إِلَّا فِي كِتَابٍ إِنَّ ذَلِكَ عَلَى اللهِ يَسِيرٌ. [1]

ترجمه : او اللهχ پيدا کړي يئ تاسې (يعنی اول ځلې نيکه د تاسې) له خاورې بيا (تاسې اولاد ئې پيدا کړئ) له څاڅکي (د مني) بيا ئې وګرځولئ تاسې جوړې جوړې (ښځه او ميړه (خاوند) د پاره د توالد او تناسل) او نه اخلي حمل هېڅ ښځه او نه يړدي (حمل هېڅ ښځه) مګر په علم د الله سره او نشي اوږدېدلی عمر د هېڅ عمر اوږد کړی شوي او نه هېڅ قدر کمولی شي له عمر د دغه (معمر) څخه (يا له عمره د بل معمر څخه يعني تزئيد او تنقيص د عمر نه دی) مګر په کتاب (د لوح محفوظ کې ليکلی دی) بېشکه دغه (لنډول او اوږدول د عمر) پر الله ډير آسان دی .

په بل ځای کې اللهχفرمايي :

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى مِنْ قَبْلُ وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُسَمًّى وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ . [2]

ترجمه : الله هغه (ذات) دی چې (اول) ئی پيدا کړی دی (نيکه) ستاسې له خاورو نه ، بيا ئې (پيدا کړه اولاده د آدم) له نطفې (د اوبو مني) بيا له کلکې ټوټې بيا راباسي تاسې (له ار حامو د ميندو) اطفال واړه (بيا تر بيت کوي ستاسې) دپاره د دې چې ورسيږئ تاسې قوت خپل ته بيا (ژوندي ساتي تاسې) دپاره ددې چې شئ تاسې زاړه (بی قوته بی مجاله) او ځينې له تاسې

---

[1] **سورة فاطر آية ١١**

[2] سورة غافر آية ٦٧

هغه دي چې مړه کول شي پخوا له دې (بلوغه) او (ساتي مو) دپاره د دې چې ورسيږئ تاسې تر هغې نيتې معلومې کړل شوې پورې (چې وخت د مرګ دی) او دپاره د دې چې تاسې عقل وکړی (په دلائلو د وحدانيت او قدرت د الله په بعث بعد الموت).

په بل ځای کې اللهχفرمايي :

وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ إِذَا أَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُونَ[1]

ترجمه : او يوه له نښو (د قدرت) د دغه (الله) دا ده چې پيدا ئې کړ (اصل د) تاسې له خاورې بيا اوس تاسې يئ بشر خوريږئ (په ځمکه کې)

په بل ځای کې اللهχفرمايي :

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُضْغَةٍ مُخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِنُبَيِّنَ لَكُمْ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً فَإِذَا أَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنْبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ .[2]

ترجمه : ای (له بعث څخه منکرو) خلقو ! که يئ تاسې په شک کې له بعث څخه (چې خلق بيا ژوندي پورته کيږي له قبرونو څخه اول خپل حال ته و ګورئ !) پس بېشکه چې موږ پيدا کړي دي (نيکه د) تاسې له خاورې بيا (مو پيدا کړه اولاده د آدم) له يوه څاڅکي (مني) څخه بيا له (يوې ټوټې) کلکې پنډې وينې بيا له يوې بوټۍ غوښې تام الخلقة (چې پوره شکل ئې پيدا کړل شوی وي)

[1] سورة الروم آية ٢٠
[2] سورة الحج آية ٥

او ناقص الخلقة (چې پوره شکل ئې پيدا کړل شوی نه وي) دپاره د دې چې بيان کړو موږ تاسې ته (خپل کامل حکمت او قدرت) او ثابت پرېږدو موږ په ارحامو کې هغه شی چې اراده و کړو (د هغه د اثبات) تر نېټې معلومې پورې (چې د زېږيدلو وخت دی) بيا راوباسو موږ تاسې (له ګېډو د ميندو ستاسې حال دا چې) طفل (وئ) بيا (پالو تاسې) تر هغه پورې چې ورسيږئ تاسې کمال او قوت خپل ته (جسماً او عقلاً) او ځينې له تاسې څخه هغه دي چې وفات کولی شي (له رشد او قوت څخه وروسته يا پخوا) اوځينې له تاسې څخه هغه دي چې رد کاوه شې (يعنی ژوندي وي) تر ناکاره عمره پورې دپاره ددې چې نه پوهيږی وروسته له پوهې په هېڅ شي (د خپلو ټولو قواوو د بېکاره کېدلو له کبله) او وينې به ته ځمکه وچه شاړه نو هر کله چې نازلې کړو موږ په دغې (وچه مړې شاړې ځمکې د آسمان له خوا) اوبه نو وخوځيږې او ډېره شي او زرغونه کړې له هر قسم نباتاتو څخه ښائسته تاند ، تنکی تېغ (د وښو په شنه کېدلو سره) .

په بل ځای کې اللهχفرمايي :

قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَكَفَرْتَ بِالَّذِي خَلَقَكَ مِن تُرَابٍ ثُمَّ مِن نُّطْفَةٍ ثُمَّ سَوَّاكَ رَجُلًا (37) . [1]

ترجمه :وويل دغه (کافر) ته (مؤمن) ملګري د ده حال دا چې دغه مؤمن خبرې اترې کولې له دغه کافر سره آيا کافر شوې پرهغه (ذات) چې پيدا کړی ئې يې ته (په اول کې) له خاورې بيا ئې له نطفې بيا ئې برابر کړې ته سړی (روغ په اندامونو) .

[1] سورة كهف آية ٣٧

پـدې اړه علمـاوو يـو بـل تـحقـيق هم کـړی دی چې انـسان لـه خـاورې نـه پـيدا شوی دی دوی وايـي ځکه

چې د انـسانـانـو پـلار حضرت آدم ν لـه خـاورې نـه پـيدا کـړل شو دی او پـاتـې نـور ټـول انـسانـان د هغه فـرع دي او چې اصل لـه خـاورې نـه دی نـو همداسې فـرع هم او بـل دا چې پـه انـسان کې چې نـور څومـره عنـاصر دي پـه هغه ټـولـو کې د خـاورې دخل شتـه نـو ځکه انـسان لـه خـاورې نـه پـيدا دی .

# دلمړي انسان د خلق (پيدائښت) مرحلې

## ١. الطين (خټه)

خټه له کومه کيږي؟ خو چې پورتني دوه عنصر (اوبه او خاوره) سره ګډ کړل شي نو ددېنه خټه جوړه شي لکه مخکې چې ما وويل : چې له کوم شي نه انسان جوړيږي په هغه عناصرو کې د خاورې دخل وي نو ځکه انسان له خاورې نه پيدا کړل شوی دی .

د خټې نه د انسان د پيدائښت په اړه اللهχفرمايي :

**ذَلِكَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ * الَّذِي أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُ وَبَدَأَ خَلْقَ الإنسان مِنْ طِينٍ * ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُ مِنْ سُلَالَةٍ مِنْ مَاءٍ مَهِينٍ * ثُمَّ سَوَّاهُ وَنَفَخَ فِيهِ مِنْ رُوحِهِ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ قَلِيلًا مَا تَشْكُرُونَ .** [1]

ترجمه : هم دی (خالق او د امور و مدبر) عالم دی په هر پټ او ښکاره ښه غالب قوي دی (په تقدير) ښه مهربان دی (په فرمان وړونکو باندې) هغه الله چې ښائسته کړي ئې دي هر شی چې پيدا کړي ئې دي هغه (هر موجود بالخصوص انسان) او شروع کړي ئې دي پيدايښت د انسان (يعنی آدم) له خټې څخه بيا ئې کړ نسل اولاد دده له خلاصې د اوبو ضعيفو حقيرو څخه بيا ئې برابر کړ (قالب د) هغه او بو (داخل) ئی کړ په دغه (قالب)کې له روح خپل څخه (مخلوق د ده دی) او وئې ګرځولئ (در ئې کړل)تاسې ته (ای د آدم اولاده) غوږونه

[1] سورة السجدة

او سترګې (چې پرې اورئ ! او وینئ) ! او زړونه (چې عقل او فکر پرې کوئ) خو سره د دغو نعمتونو بیخی لږ شکر کوئ تاسې !

په بل ځای کې الله χ فرمايي چې دا خټه سریښناکه وه :

فَاسْتَفْتِهِمْ أَهُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمْ مَنْ خَلَقْنَا إِنَّا خَلَقْنَاهُمْ مِنْ طِينٍ لَازِبٍ .[1]

ترجمه : پس وپوښته ته دغه مشرکان چې آیا دوی سخت دي له جهته د پیدایښت که هغه څوک چې پیدا کړي مو دي بېشکه موږ پیدا کړي دي دوی له خټې سرېښناکې .

دلته چې د یادولو وړ نکته ده مخکې یو ځل اشاره ورته تېره شوه هغه داده چې لکه چې انسانان په شکلونو ، اخلاقو او عادتونه کې څنګه سره بدل بدل دي دا بدلون په دوی کې د هغه خاورې له بدلون نه راغلی دی چې له مختلفو ځایونو څخه په مختلفو رنګونو او کیفیتونو کې د حضرت آدم ν د بدن د جوړلو لپاره را ټوله کړل شوې وه ددې نکتې په اړه په یو حدیث کې تصریح شوېده رسول الله γ فرمايي :

الله χ انسان د خاورې له یوې قبضې نه پیدا کړو چې د ټولې زمکې نه یې واخیسته ددې امله انسانان د زمکې په ډول راغلل نو په دوی کې سپین ، سور او تور راغلل ، همدارنګه د دوی په مینځ کې خفه او خوشحال راغلل ، همدارنګه د دوی په مینځ کې خبیث او پاک راغلل .[2]

---

[1] سورة الصافات
[2] أحمد وأبو داود والترمذي وابن حبان في صحيحه

## ٢. الحمأ المسنون (سخا کړل شوې خټه)

اللهχدا خټه پرېښوده وروسته ددې چې سره جوړه یې کړه تردې چې دا سخا (خوسا) شوه اللهχ فرمایي :

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الإنسان مِنْ صَلْصَالٍ مِنْ حَمَأٍ مَسْنُونٍ . [1]

ترجمه: او خامخا په تحقیق پیدا کړی دی موږ انسان (آدم) له وچې خټې چې کړنګېده (لکه کودری چې وی) له تورې خټې سخا کړی شوې.

## ٣. صلصالاً (وچه کړنګېدونکې خټه)

وروسته لدې چې خټه سخا شوه نو بیا هغه (وچه کړنګېدونکې) شوه اللهχفرمایي :

خَلَقَ الإنسان مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ * وَخَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ. [2]

ترجمه : پیدا کړی دی (الله) انسان (آدم) له خټې کړنګېدونکې وچې څخه په شان د کودری او پیدا کړی دی (الله) (پلار د) پېریانو (ابلیس) له خالصې شغلې د اور څخه چې دود (لوګی) ئې نه درلود.

یعني کله چې اللهχ اوبه او خاوره سره ګډ کړل نو خټه شوه هغه بیا چې زړه شوه او بوی یې وکولو نو مسنون شوه کله چې وچه شوه نو بیا صلصال شوه او تردې مرحلې پورې په حضرت آدم ν کې نفس او ژوند نه وو .

---

[1] سورة الحجر
[2] سورة الرحمن

او دا چې ددې مرحلو په مینځ کې څومره وخت تېرېدو پدې اړه قرآن کریم څه نه دي ویلي او ددې مرحلو په اړه د حضرت ابي هریره η یو حدیث دی هغه فرمايي رسول اللّهγ فرمايل :

اللّهχ آدم ν له خاورې نه پیدا کړو چې هغه خټه شوه بیا یې پرېښود چې هغه سخا او زړه شوه بیا یې د هغه صورت ورڅخه جوړ کړو بیا یې همداسې پرېښوده ترڅو داسې وچه لکه کودړی شوه او پدې وخت کې به ابلیس ور باندې تېرېدو او ویل به یې ته ضرور د کوم لوی کار لپاره پیدا شوی یې بیا اللّهχ پکې روح واچولو اول یې روح سترګو او خیشومونو ته ورغلو او وپرنجېدو بیا اللّهχ ورته ور وښودل چې الحمد اللّهχ ووایي اللّهχ ورته وویل : ستا رب د په تا باندې رحم وکوي .[1]

---

[1] رواه البزار والترمذي والنسائي

# ٤. د روح را تلل

الله χ چې کله له خټې نه انسان جوړ کړو هغه يې پريښود ترڅو هغه وچ شو نو بيا يې پکې روح واچولو (تفصيلي قصه يې لږ مخکې تېره شويده)

او الله χ فرښتو ته د روح اچولو نه وړاندې ويلي وو چې کله زه له خټې نه يو بشر جوړوم کله چې زه په هغه کې روح واچوم تاسې به هغه ته سجده وکوئ الله χ فرمايي :

**إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِنْ طِينٍ * فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِنْ رُوحِي فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ .** [1]

ترجمه :) ياد كړه) هغه وخت چې وفرمايل رب ستا پرښتو ته چې بېشكه زه پيدا كوونكى يم د يو بشر (آدم) له خټې څخه. پس كله چې برابر كړ ما (قالب د) هغه (په ښه شكل سره) او پو كړ ما په هغه قالب كې له روح خپل پس پريوځئ (تاسې ټول (اى پرښتو ! تعظيماً) ده ته سجده كوونكي.

چې په حضرت آدم ν کې روح واچول شو هغه ژوندی شو (قصه يې مخکې تېره شويده)

---

[1] سورة ص

# د مور په ګېډه کې د انسان مرحلې

د هغه نه وروسته هر انسان د مور په ګېډه کې پيدا کيږي او هغه هم په مختلفو مراحلو سره پيدا کيږي هغه مرحلې په قرآن کريم کې هم ورته اشاره شوېده او په احاديثو کې يې هم ذکر راغلى دى اللهχ د هغه مراحلو په اړه فرمايي .

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُضْغَةٍ مُخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِنُبَيِّنَ لَكُمْ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً فَإِذَا أَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنْبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ . [1]

ترجمه : اى (له بعث څخه منکرو) خلقو ! که يئ تاسې په شک کې له بعث څخه (چې خلق بيا ژوندي پورته کيږي له قبرونو څخه اول خپل حال ته و ګورئ !) پس بېشکه چې پيدا کړى دى موږ (نيکه د) تاسې له خاورې بيا (مو پيدا کړه اولاده د آدم) له يوه څاڅکي (مني) څخه بيا له (يوې ټوټې) کلکې پنډې وينې بيا له يوې بوټى غوښې تام الخلقة (چې پوره شکل ئى پيدا کړى شوى وې) او ناقص الخلقة (چې پوره شکل ئې پيدا کړى شوى نه وي) دپاره د دې چې بيان کړو موږ تاسې ته (خپل کامل حکمت او قدرت) او ثابت پريږدو موږ په ارحامو کې هغه شى چې اراده و کړو (د هغه د اثبات) تر نيټې معلومې پورې (چې د زيږيدلو وخت دى) بيا راوباسو موږ تاسې (له ګېډو د ميندو ستاسې حال دا چې) طفل (وئ) بيا (پالو

[1] سورة الحج

تاسې) تر هغه پورې چې ورسېږئ تاسې کمال او قوت خپل ته (جسماً او عقلاً) او ځینې له تاسې څخه هغه دي چې وفات کولی شې (له رشد او قوت څخه وروسته یا پخوا) اوځینې له تاسې څخه هغه دي چې رد کاوه شي(یعنی ژوندي وي) تر ناکاره عمره پورې دپاره د دي چې نه پوهیږي وروسته له پوهې په هېڅ شی (د خپلو ټولو قواوو د بېکاره کېدلو له کبله) او وینې به ته ځمکه وچه شاړه نو هر کله چې نازلې کړو موږ په دغې (وچه مړې شاړې ځمکې د آسمان له خوا) اوبه نو وخوځیږی او ډډه شي او زرغونه کړې له هر قسم نباتاتو څخه ښائسته تاند ، تنکې تیغ (د وښو په شنه کېدلو سره).

په بل ځای کې اللهﷻ فرمایي :

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الإنسان مِنْ سُلَالَةٍ مِنْ طِينٍ * ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَكِينٍ * ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ الله احْسَنُ الْخَالِقِينَ. [1]

ترجمه : او قسم دی خامخا په تحقیق پیدا کړي دي موږ انسان (آدم) له خالصې (صافې له خیرې ویستلې شوې) خټو نه بیا وګرځاوه کېښود موږ (اولاده د) دغه (آدم) نطفه (ترلی څاڅکی د مني) په یو قرارګاه محکم (رحم کې) بیا وګرځوله موږ دا نطفه ټوټه د وینو (کلکه سریښنا که) بیا و ګرځوله موږ دغه ټوټه د وینو یوه وړه بوټی د غوښو بیا وګرځوله موږ دا بوټی د غوښو هډو کی بیا ور واغوستله موږ دې هډو کو ته (پس له پیدا کولو د رګونواو د پلو او نورو) غوښه بیا مو (ژوندی) پیدا کړ دی په پیدایښت بل سره (په نوي صورت) پس ډیر لوړ لوی

[1] سورة المؤمنون

دی شان د اللهχ (په قدرت او په حکمت خپل کې) چې ډېر ښه پیدا کوونکی (صورت تړونکی) دی (له نورو ټولو پیدا کوونکیو صورت تړونکیو څخه خلقاً) .

په بل ځای کې اللهχفرمایي :

إِنَّا خَلَقْنَا الإنسان مِنْ نُطْفَةٍ أَمْشَاجٍ نَبْتَلِيهِ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيرًا . [1]

ترجمه : بېشکه پیدا کړی دی موږ انسان له نطفې څخه چې ګډوډه شوې ده (د نر او د ښځې) ازمایو ئې نو وګرځولو موږ دغه انسان اوریدونکی او لیدونکی.

## ١. النطفه (مني)

په اول کې انسان چې د پلار د شا نه د مور رِحم ته لاړ شي خالي نطفه وي اللهχددې په اړه فرمایي :

خَلَقَ الإنسان مِنْ نُطْفَةٍ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ مُبِينٌ . [2]

ترجمه : پیدا کړی دی (الله) انسان لره له نطفې(اوبو د منیو) نه نو ناڅاپه دغه (انسان) سخت جګړه کوونکی وو ښکاره (په ناحقه سره).

په بل ځای کې اللهχفرمایي :

وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَكَفَرْتَ بِالَّذِي خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ سَوَّاكَ رَجُلًا . [3]

---

[1] سورة الانسان
[2] سورة النحل آية ٤
[3] سورة الكهف

ترجمه : د ده حال داووچې دغه مؤمن خبرې اترې کولې له دغه کافر سره آیا کافر شوې ته په هغه ذات چې ته یې پیدا کړی یې له خاورې نه بیا له نطفې نه بیا یې ته پوره سړی جوړ کړې (په ټولو اندامونو جوړ) .

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ. [1]

ترجمه : ای (له بعث څخه منکرو) خلقو ! که یئ تاسې په شک کې له بعث څخه (چې خلق بیا ژوندي پورته کیږي له قبرونو څخه اول خپل حال ته و ګورئ !) پس بېشکه چې پیدا کړي دي موږ (نیکه د) تاسې له خاورې بیا (مو پیدا کړه اولاده د آدم) له یوه څاڅکې (منې) څخه .

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَكِينٍ . [2]

ترجمه : بیا وګرځاوه کیښود موږ (اولاده د) دغه (آدم) نطفه (تړلی څاڅکی د مني) په یوه قرار ګاه محکم (رحم کې) .

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

وَاللهُ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمْ أَزْوَاجًا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أنثى وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُعَمَّرٍ وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهِ إِلَّا فِي كِتَابٍ إِنَّ ذَلِكَ عَلَى اللهِ يَسِيرٌ . [1]

---

[1] سورة الحج آية ٥
[2] سورة المؤمنون

ترجمه : او الله پيدا کړي يئ تاسې (يعني اول ځلې نيکه د تاسې) له خاوره بيا (تاسې اولاد ئې پيدا کړئ) له څاڅکي (د مني) بيا ئې وګرځولئ تاسې جوړې جوړې (ښځه او خاوند) د پاره د توالد او تناسل) او نه اخلي حمل هېڅ ښځه او نه زيږدي (حمل هېڅ ښځه) مګر په علم د الله سره او نشي اوږدېدلی عمر د هېڅ عمر اوږد کړی شوي او نه هېڅ قدر کمولی شي له عمر د دغه (معمر) څخه (يا له عمره د بل معمر څخه يعني تزئيد او تنقيص د عمر نه دی) مګر په کتاب (د لوح محفوظ کې ليکلی دی)بېشکه دغه (لنډول او اوږدول د عمر) پر الله ډير آسان دی .

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

أَوَلَمْ يَرَ الإنسان أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِنْ نُطْفَةٍ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ مُبِينٌ . [2]

ترجمه : آيا نه ويني نه پوهيږي انسان چې بېشکه موږ پيدا کړی دی هغه له نطفې (يوه څاڅکې اوبو) پس ناڅاپه دی سخت جګړه کوونکی ښکاره دی.

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ. [3]

ترجمه : الله هغه (ذات) دی چې(اول) ئې پيدا کړی دی (نيکه) ستاسې له خاورو نه ، بيا ئې (پيدا کړه اولاده د آدم) له نطفې (د اوبو مني)

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

---

[1] سورة فاطر آية ١١
[2] سورة يس آية ٧٧
[3] سورة غافر

مِنْ نُطْفَةٍ إِذَا تُمْنَى . [1]

ترجمه : له يوه څاڅكي اوبو د (مني) څخه .

په بل ځاى كې اللهχ فرمايي :

أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِنْ مَنِيٍّ يُمْنَى. [2]

ترجمه : آيا نه وو دغه (انسان اول) يو څاڅكى له مني څخه چې تويوه شي (اچوه شي پر رحمونو د ښځو كې) .

په بل ځاى كې اللهχ فرمايي :

إِنَّا خَلَقْنَا الإنسان مِنْ نُطْفَةٍ أَمْشَاجٍ نَبْتَلِيهِ فَجَعَلْنَاهُ سَمِيعًا بَصِيرًا. [3]

ترجمه : بېشكه پيدا كړى دى موږ انسان له نطفې څخه چې ګډوډه شوي ده (د نر او د ښځې) ازمايو ئې نو وګرځولو موږ دغه انسان اوريدونكى او ليدونكى.

په بل ځاى كې اللهχ فرمايي :

مِنْ نُطْفَةٍ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ . [4]

ترجمه : له نطفې (قطرې د مني) څخه .

او دا د نطفې مرحله وروسته ددې راغله چې يو انسان نارينه او يو انسان زنانه په دنيا كې موجود شول او نطفه هغه وخت تشكيل كيږي چې كله

---

[1] سورة النجم
[2] سورة القيامة آية ٣٧
[3] سورة الانسان آية ٢
[4] سورة عبس آية ١٩

د نـاريـنه اوبه د زنـانه لـه اوبـو سره ګـډې شي نـو د دواړواوبـو څخه نطفـه جوړه شي .

## ۲. العلقة (تـوټه د غوښې)

بیا د نطفې نه علقه جوړه شي الله χ د علقې په اړه فرمایي :

يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنْ كُنْتُمْ فِي رَيْبٍ مِنَ الْبَعْثِ فَإِنَّا خَلَقْنَاكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُضْغَةٍ مُخَلَّقَةٍ وَغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِنُبَيِّنَ لَكُمْ وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ مَا نَشَاءُ إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا وَتَرَى الْأَرْضَ هَامِدَةً فَإِذَا أَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنْبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ . [1]

ترجمه : ای (له بعث څخه منکرو) خلقو ! که ئې تاسې په شک کې له بعث څخه (چې خلق بیا ژوندي پورته کیږي له قبرونو څخه اول خپل حال ته و ګورئ !) پس بېشکه چې پیدا کړي دي موږ (نیکه د تاسې له خاورې بیا (مو پیدا کړه اولاده د آدم) له یوه څاڅکي (مني) څخه بیا له (یوې ټوټې) کلکې پنډې وینې بیا له یوې بوټۍ غوښې تام الخلقة (چې پوره شکل ئې پیدا کړی شوی وي) او ناقص الخلقة (چې پوره شکل ئې پیدا کړی شوی نه وي) دپاره د دي چې بیان کړو موږ تاسې ته (خپل کامل حکمت او قدرت) او ثابت پرېږدو موږ په ارحامو کې هغه شی چې اراده و کړو (د هغه د اثبات) تر نېټې معلومې پورې (چې د زیږیدلو وخت دی) بیا راوباسو موږ تاسې (له ګېډو د میندو ستاسې حال دا چې) طفل (وئ) بیا (پالو تاسې) تر هغه پورې چې ورسیږئ تاسې کمال او قوت خپل ته (جسماً او عقلاً) او ځینې له تاسې څخه هغه دي چې وفات کولی شي (له رشد او قوت څخه وروسته یا پخوا) اوځینې له تاسې څخه هغه دي چې رد کاوه شي (یعنې ژوندي وي) تر ناکاره

[1] سورة الحج آية ٥

عمره پورې دپاره د دې چې نه پوهیږي وروسته له پوهې په هیڅ شي (د خپلو ټولو قواوو د بېکاره کېدلو له کبله) او وینې به ته ځمکه وچه شاړه نو هر کله چې نازلې کړو موږ په دغې (وچې مړې شاړې ځمکې(د آسمان له خوا) اوبه نو وخوځیږي او ډډه شي او زرغونه کړي له هر قسم نباتاتو څخه ښائسته تاند ، تنکي تیغ (د وښو په شنه کېدلو سره).

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى مِنْ قَبْلُ وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُسَمًّى وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ . [1]

ترجمه : الله هغه (ذات) دی چې(اول) ئې پیدا کړی دی (نیکه) ستاسې له خاورو نه ، بیا ئې(پیدا کړه اولاده د آدم) له نطفې(د اوبو مني) بیا له کلکې ټوټې بیا راباسي تاسې (له ار حامو د میندو) اطفال واړه (بیا تر بیت کوی ستاسې) دپاره د دې چې ورسیږئ تاسې قوت خپل ته بیا (ژوندي ساتي تاسې) دپاره ددې چې شئ تاسې زاړه (بې قوته بې مجاله) او ځینې له تا سې هغه دي چې مړه کول شي پخوا له دې (بلوغه) او (ساتي مو) دپاره د دې چې ورسیږئ تاسې تر هغې نېټې معلومې کړل شوې پورې (چې وخت د مرګ دی) او دپاره د دي چې تاسې عقل وکړئ (په دلائلو د وحدانیت او قدرت د الله په بعث بعد الموت).

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

[1] سورة الغافر آية ٦٧

ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ الله احْسَنُ الْخَالِقِينَ . [1]

ترجمه : بیا وګرځوله موږ دا نطفه ټوټه د وینو (کلکه سریښنا که) بیا و ګرځوله موږ دغه ټوټه د وینو یوه وړه بوټۍ د غوښو بیا وګرځوله موږ دا بوټۍ د غوښو هډو کی بیا ور واغوستله موږ دې هډو کو ته (پس له پیدا کولو د رګونواو د پلو او نورو) غوښه بیا مو (ژوندی) پیدا کړ دی په پیدایښت بل سره (په نوي صورت) پس ډیر لوړ لوی دی شان د الله χ (په قدرت او په حکمت خپل کې) چې ډیر ښه پیدا کوونکی (صورت تړونکی) دی (له نورو ټولو پیدا کوونکیو صورت تړونکیو څخه خلقاً) .

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوَّى . [2]

ترجمه : بیا وو دی یوه ټوټه د وینو نو پیدا کړ الله (اندامونه ئی)

## ۳. المضغة (د غوښې ټوټه چې د ژوولو وړ وي)

د المضغة لفظ په قرآن کریم کې په سورة المؤمنون کې دوه ځله او په سورة حج کې یو ځل راغلی دی آیتونه یې همدا او س مخکې تېر شول .

[1] سورة المؤمنون آية ١٤
[2] سورة القيامة آية ٣٨

## الف. غير المخلقة (چې پوره شکل ونه لري)

دا حالت په جنين (د مور په ګېډه کې په ماشوم) باندې په دريمه او څلورمه هفته کې راځي او پدې وخت کې هېڅ اندام او د بدن برخې نه ښکاره کيږي .

## ب . المخلقة (چې شکل ولري)

د څلورمې هفتې په آخر کې دا مرحله شروع کيږي او د انسان د بدن ځينې اثار په دې ټوټه کې ښکاره کيږي او دا تغير د دريمې مياشتې تر آخر پورې دوام کوي او دې دواړو مرحلو ته اللهχ اشاره کړيده په سورة حج ٥ آية کې لږ وړاندې تېر شو .

## ٤ . العظام (هډوکي)

پدې مرحله کې د انسان د بدن د برخو هډوکي جوړ شي لږ مخکې د سورة المؤمنون په ١٤ آية کې اللهχفرمايلي وو : فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا

ترجمه: بيا مو له هغه ټوټې نه هډوکي جوړ کړل

## ٥. کساء العظام باللحم (هډوکو ته د غوښې ور آغوستل)

کله چې د هډوکو جوړښت پوره شي بیا په هغه باندې هر لوري ته غوښه شنه شي نو داسې شي لکه دا غوښه د هډوکو لپاره جامه شي چې له یوه پلوه یې ساتي او له بله پلوه ښائست ورکوي لېږ وړاندې د سورة المؤمنون په ١٤ آیة کې تېر شول اللهχ هلته فرمایي : **فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا**

ترجمه: بیا ور واغوستله مونږ دې هډوکو ته (پس له پیدا کولو د ر ګونو او د پلواو نورو) غوښه .

## ٦. الخلق الآخر (بل پیدائښت)

پدې مرحله کې په انسان کې روح اچول کیږي او دا روح اچول د علقې د مرحلې نه تقریباً څلور میاشتې وروسته وي رسول اللهγ پدې اړه فرمایي :

بېشکه یو ستاسې د مور په ګېډه کې پیدا کیږي هلته پروت وي څلوېښت ورځې ، څلویښت ورځې وروسته علقه شي ، بیا څلوېښت ورځې وروسته مضغة شي بیا ورته ملکه را لېږل کیږي چې روح پکې واچوي او د څلورو خبرو حکم ورته شوی وي ١. چې دده رزق ولیکي ٢. اجل یې ولیکي (څه وخت به مړ کیږي) ٣. عمل یې ولیکي (نېک عمل به وي که بد عمل) ٤. نیک بخت دی او که بد بخت .[1]

بیا ددې ورځې نه وروسته انسان د مور په ګېډه کې ژوندی وي او چې مخکې اللهχ ورته لیکلي وي نو

---

[1] صحیح البخاري

په سمه توګه باندې د محدود وخت تېرولو نه وروسته دنيا ته سترګې را خلاصې کړي او په دنيا کې يې خپل ژوند شروع شي .

## په دنيا کې د انسان مرحلې

او کله چې را پيدا شي بيا په دنيا کې له څو مرحلو څخه تيريږي .

## ١. المهد (د زانګو مرحله)

مهد هغه بسترې ته وايي چې د ماشوم لپاره تيارول کيږي او هغه وربانديې د خوب لپاره څملي خو د انسان په مرحله کې مهد هغه حالت ته ويل کيږي چې په هغه حالت کې ډېر وړوکی وي الله χ فرمايي :

(فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ قَالُوا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا . [1]

ترجمه : نو اشاره وکړه (مريمېO) هغه ته (چې له دغه عيسى سره وغږيږئ !) نو وويل (خلقو) څرنګه خبرې وکړو موږ له هغه چا سره چې دی هغه په مهد (زانګو يا غيږ)کې وړوکی (تی رودونکی) .

علامه ابن کثير ρ ددې آية په تفسير کې فرمايي : دا معنی نه چې د هغه ماشوم سره موږ څنګه خبرې وکوو چې هغه په زانګو کې پروت دی او يا په بستره باندې پروت دی بلکه معنی دا چې موږ له دومره واړه ماشوم سره څنګه خبرې وکوو چې هغه تر اوسه د خبرو په کولو باندې نه پوهيږي

[1] سورة مريم آية ٢٩

او د ماشوم والي له امله د خبرو کولو صلاحيت نه لري .[1]

نو د مهد مرحله له پيدائښت نه شروع او د شودو نه د ماشوم تر بېليدو پورې ده او يا په لنډو ټکو کې د ماشوم د شودو د خوراک مرحله د مهد مرحله ده

## ٢. مرحلة الصبا (د ماشوم توب مرحله)

دا مرحله تر بلوغ وړاندې وي چې پدې وخت کې ماشوم په هيڅ شي باندې مکلف نه وي د المعجم الوجيز له مخې صبي د صبوة نه دی ميلان ته وايي پدې عمر کې هم ماشوم د لهوياتو او بې ځايه کارونو لور ته ميلان کوي د صبي لفظ په قرآن کريم کې د حضرت يحی ν په اړه استعمال شوی دی الله χ فرمايي :

**يَا يَحْيَى خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ وَآتَيْنَاهُ الْحُكْمَ صَبِيًّا .**[2]

ترجمه : ای يحيی واخله دغه کتاب (توريت) په قوت (د زړه سره) او ورکړی وو موږ دغه يحيی ته حکم (حکمت او نبوت) په دغه حال کې چې دی هلک وو.

د تفسير الوسيط صاحب ددې تفسير کړی دی هغه وايي معنی يې داده چې په هغه وخت کې چې دی لا بلوغ ته نه وو رسېدلی او امام قرطبي صاحب پدې اړه د حضرت ابن عباس η يو قول نقل کړی دی هغه فرمايي :

---

[1] البداية والنهاية
[2] سورة مريم آية ١٢

مَن قرأ القرآن قبل أن يحتَلِم فهو ممَّن أُوتِي الحكم صبيًّا

ترجمه : هغه كس چې په داسې وخت كې قرآن كريم زده كړي او ووايي چې بلوغ ته نه وي رسېدلی دا له هغه كسانو څخه دی چې په ماشوم توب كې ورته حكم (علم) وركړل شوی وي .

او د فقهاوو د مسلك له مخې هم ماشوم هغه چا ته وايي چې بالغ شوی نه وي د حضرت عائشې ι حديث دی هغه فرمايي : رسول الله γ فرمايل : **رُفِع القلم عن ثلاثٍ، عن النائم حتى يستيقظ، وعن الصبي حتى يحتلم، وعن المجنون حتى يعقِلَ .**[1] .

ترجمة: له دريو كسانو څخه قلم پورته شوی دی (د هغوی خطاګانې نه ليكي) له ويده نه چې ترڅو را ويښ شوی نه وي ، له ما شوم نه چې ترڅو بالغ شوی نه وي ، له ليوني څخه ترڅو جوړ شوی نه وي .

## ٣. مرحلة الفتوة (د ځوانی مرحله)

دا مرحله د انسان په عمر كې د بلوغ نه واخله تر كهولت (زوړ والي) پورې وي په معجم الوجيز (د عربي ژبې قاموس دی) كې راغلي دي چې شباب د مراهقت (چې بلوغ ته نېږدې عمر دی) نه واخله تر سړي توب (مكمل بالغ كېدلو) پورې وي او فتی هغه ځوان وي چې نوی بالغ شوی وي .

په قرآن كريم كې د فتا لفظ راغلی دی الله χ فرمايي :

---

[1] رواه احمد

قَالَ لِفَتَاهُ آتِنَا غَدَاءَنَا . [1]

ترجمه : وويل (موسی) خپل زلمی ته راوړه موږ ته صباح ناری (خوراک)

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

إِذْ أَوَى الْفِتْيَةُ إِلَى الْكَهْفِ فَقَالُوا رَبَّنَا آتِنَا مِنْ لَدُنْكَ رَحْمَةً وَهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا . [2]

ترجمه : یاد کړه هغه وقت چې رجوع وکړه هغو زلمیانو (د ویری د کفارو) غار ته نو وویل دوی ای ربه زمونږ راکړه موږ ته له خپله نزده رحمت (چې پری پټ شو له غلیمه (دښمنه) او تیار کړه موږ ته له دی کاره ځموږ (چې مفارقت د کفارو دی)

په تفسیر جلالین کې پدې ځای کې لیکلي دي :

الفتية جمع فتى و هو الشاب الكامل

ترجمه : د الفتية لفظ د فتى جمع ده هغه پوره ځوان ته ویل کیږي .

---

1 سورة الكهف آية ٦٢
2 سورة الكهف آية ١٠

## ٤ . الـكـهـولـة

(پـوره عمـر چې انـسـان تـر ځـوانـي پـکـې تـېر شي چې زمـونږ پـه ژبـه کې ورتـه پـوخ عمـر ويـل کـيږي)

دا هغـه مرتـبـه ده چې مـوږ ورتـه پـوخ وايـو پـدې وخت کې د انـسـان قـوت او عقـل پـوخ شي او د کـهـولـة پـه اړه پـه معجم الـوجـيـز کې لـيـکـلـي دي :

الكهل: مَن جاوز الثلاثين إلى نحو الخمسين

تـرجمـه : الـکـهـل هغـه تـه وايـي چې د دېـرشو کـلـونـو څخه پـورتـه شي تـر پـنـځوسو کـلـونـو پـورې .

د کـهـل لـفـظ پـه قـرآن کـريـم کې راغـلـی دی ﷲχ فـرمـايـي :

وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَمِنَ الصَّالِحِينَ .[1]

تـرجمـه : او خبـرى بـه کـوى لـه خلـقـو سره پـه مهد (د مـور پـه غيږ يـا پـه زانـگـو يـا پـه طفـولـيـت)کې او پـه کـهـولـت (پـوره عمـر)کې او لـه صالـحـانـو څخه بـه وى .

پـه تـفـسيـر بـغـوي کې لـيـکـلـي دي :

العرب تمدحُ الكهولة؛ لأنها الحالة الوسطى في استحكام السن واستحكام العقل وجودة الرأي والتجربة.

تـرجمـه : عـرب پـه عمـر کې د کـهـولـة د مـرحـلـې سـتـايـنـه کـوي ځکـه دا هغـه مـيـنځنـی وخت دی چې د

---

[1] سورة آل عمران آيـة ٤٦

انسان عمر پکې محکم شي او عقل پکې محکم شي او رایه او تجربه پکې پاخه شي .

## ٥. الشیخوخة (زوړ والی)

د انسان په عمر کې دا مرحله د کهولة نه وروسته شروع کیږي او تر هرم (کله چې د انسان د بدن خرابېدل او ډېر زړ توب شروع شي) پورې وي په المعجم الوجیز کې راغلي چې شیخوخة غالباً له پنځوسو کلونو څخه (په کوم ځای کې چې د کهولة مرحله پای ته رسیږي) وروسته شروع کیږي او کله چې د هرم وخت شروع کیږي هلته دا مرحله پای ته رسیږي .

نو کله چې د کهولة مرحله پای ته ورسیږي نو انسان پدې نوې مرحله کې داخلیږي پدې کې انسان بېرته کمزوري خوا ته روان شي بیا تول کارونه په هغه ډول نشي کولی کوم به چې ده په کهولة او له هغه څخه وړاندې کول او دا په هرشي کې د اللهχیو ډول حکمت دی چې کوم شی پوره کمال ته ورسیږي له هغه وخت نه یې بېرته زوال شروع کیږي اللهχ ددې مرحلې ذکر په قرآن کریم کې کړی دی اللهχ فرمایي :

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ ثُمَّ يُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُونُوا شُيُوخًا وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى مِنْ قَبْلُ وَلِتَبْلُغُوا أَجَلًا مُسَمًّى وَلَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ .[1]

ترجمه : الله هغه (ذات) دی چې (اول) ئې پیدا کړی دی (نیکه) ستاسې له خاورو نه ، بیا ئې (پیدا کړه اولاده د آدم) له نطفې (د اوبو مني) بیا له کلکې توټې بیا راباسي تاسې (له ار حامو د

[1] سورة غافر آیة ٦٧

میندو) اطفال واړه (بیا تر بیت کوي ستاسې) دپاره د دي چې ورسيږئ تاسې د قوت خپل ته بیا (ژوندي ساتي تاسې) دپاره ددې چې شئ تاسې زاړه (بی قوته بی مجاله) او ځینې له تا سې هغه دي چې مړه کول شي پخوا له دې (بلوغه) او (ساتي مو) دپاره د دې چې ورسيږئ تاسې تر هغې نیټې معلومې کړل شوې پورې (چې وخت د مرګ دی) او دپاره د دې عقل نه کار واخلئ (په دلائلو د وحدانیت او قدرت د الله χ په بعث بعد الموت).

## ٦. الهرم

په معجم الوجيز کې وايي چې هرم دېته وايي چې انسان په خپل ژوند کې ډېر مشر شي او بیا کمزوری شي او بیا دا مرحله تر مرګ پورې دوام کوي او ددېنه وروسته چې څه کیږي اللهχ فرمايي :

ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ لَمَيِّتُونَ * ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ.[1]

ترجمه : بیا بېشکه تاسې پس له دې ژوندي کولو د تاسې (په دغه پاس طريقه سره) خامخا مړه کېدونکي یئ بیا بېشکه تاسې په ورځې د قیامت کې بیا ژوندي راپاڅول شئ (له قبورو نه لپاره د جزاء) .

[1] سورة المؤمنون آية ١٥ ، ١٦

## د انسان دوه مهمې برخې

اللهχ انسان له دوو شیانو څخه مرکب پیدا کړی دی چې پدې دواړو برخو کې ډېره مهمه برخه د انسان روح دی او همغه لایزال ذات د انسان د روح او د انسان د جسد بلکه د ټولو کائناتو خالق دی:
**الله خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ** .[1]

ترجمه : الله پیدا کوونکی د هر څیز دی (چې موجود وی په دنیا کې) او دغه (الله) پر هر څیز و کیل (ساتونکی متصرف) دی .

نو د انسان په دوو برخو یوه برخه د هغه روح ده دا روح څه شی دی؟

## الروح (نفس)

روح د اللهχ یو معظم او مکرم مخلوق دی اللهχ ورته ډېر لوی عزت او لوی شرف ورکړی دی حتی تردې چې په قرآن کریم کې یې یو ځل خپل ځان ته نسبت کړی دی او هلته اللهχ د حضرت آدم ν د پیدائښت په واقعه کې فرمایي :

**فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِنْ رُوحِي فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ** . 2

ترجمه :او کله چې هغه ما پوره کړو او پو می کړ په ده کې له روح خپل (او دی پری ژوندی شو) نو پرېوځئ تاسې ده ته په دی حال کې چې سجده کوونکي یئ .

---

[1] سورة الزمر آية ٧
[2] سورة الحجر آية ٢٩

او د روح لپاره یوه د تعظیم او اکرام خبره داده چې ددې په اړه مکمل علم یوازې او یوازې هغه ذات اللهχ لري چې دا یې پیدا کړی دی او د هغه نه بغیر هېڅوک ددې په راز او خاصو خبرو باندې نه پوهیږي او کله به چې وحی راتله هم ډېرو خلکو به پوښتنه کوله چې دا روح څه شی دی؟

لکه اللهχ چې فرمایي :

**وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الرُّوحِ قُلِ الرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّي وَمَا أُوتِيتُمْ مِنَ الْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا .** [1]

ترجمه : او پوښتنه کوي له تانه (ای محمده !) له (کیفیته د) روح څخه ، ووایه (ای محمده ! دوی ته) چې روح له امره د رب زما دی او نه دی درکړل شوی تاسې ته (برخه) له علم (پوهنې) څخه مګر لږه .

دا آیت هغه وخت نازل شو چې کله یهودو له رسول اللهγ نه پوښتنه وکوله او ورته یې وویل : **یا ابا القاسم ما الروح؟** (ای ابا القاسم روح څه شی دی؟ رسول اللهγ چُپ شو د وحی نزول ورباندې شروع شو کله چې رسول اللهγ سترګې پورته کړې نو همدا آیت یې تلاوت کړو .

د روح لفظ په قرآن کریم کې ١٦ ځله راغلې ده .

ددې جمع (ارواح) په قرآن کریم کې بالکل یاده کړل شوې نه ده .

---

[1] **سورة الاسراء آية ٨٥**

روح القدس په قرآن کریم کې څلور ځله ذکر کړل شوی دی .

الروح الامین لفظ په قرآن کریم کې یو ځل ذکر کړل شوی دی .

رَوح لفظ (د (ر) په زبر سره) په قرآن کریم دری ځله راغلی دی .

په قرآن کریم کې د روح د لفظ لپاره ګڼ شمېر معنی ګانې دي

## 1- جبریل ν

الله χ فرمایي :

وَإِنَّهُ لَتَنزِيلُ رَبِّ الْعَالَمِينَ (192) نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ(193) عَلَى قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنذِرِينَ (194) بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ(195).[1]

ترجمه : او بېشکه دغه (قرآن) خامخا نازل کړی شوی دی له (طرفه د) رب د عالمیانو (شعر سحر او باطلې قصې نه دي) نازل شوی دی په دغه قرآن سره روح امانتګر (یعنی راوړی دی دا قرآن جبریل الامین) پر زړه ستا دپاره د دي چې شې ته له ویروونکیو (خلقو له عذابه د الله) په ژبه عربي ښکاره سره (راوړی دی دغه قرآن جبریل امین پر زړه ستا) .

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

---

[1] سورة الشعراء

قُلْ نَزَّلَهُ رُوحُ الْقُدُسِ مِن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ لِيُثَبِّتَ الَّذِينَ آمَنُواْ وَهُدًى وَبُشْرَى لِلْمُسْلِمِينَ . [1]

ترجمه : ووايه (اى محمده دغو كفارو ته چې) نازل كړى دى دغه (قرآن) روح پاک (جبريل) (له طرفه) د رب ستا په حقه سره (بلا شبهه) د پاره د دې چې ثابت كړي (په حقانيت د قرآن) هغه كسان چې مؤمنان دي او هدايت دى او زيرى (د جنت) دى دپاره د مسلمانانو .

په روح القدس سره هم د حضرت جبريل v نه تعبير شوى دى .

اللهχ فرمايي :

إِذْ قَالَ الله يَا عِيسى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَى وَالِدَتِكَ إِذْ أَيَّدتُّكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلاً وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالإِنجِيلَ وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ بِإِذْنِي فَتَنفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْراً بِإِذْنِي وَتُبْرِئُ الأَكْمَهَ وَالأَبْرَصَ بِإِذْنِي وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوتَى بِإِذْنِي وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَنكَ إِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُواْ مِنْهُمْ إِنْ هَذَا إِلاَّ سِحْرٌ مُّبِينٌ . [2]

ترجمه :(ياد كړئ) هغه وخت چېوفرمايل اللهχ اى عيسى زوى د مريمې ياد كړه احسان زما پر تا او په مور ستا (چې غوره كړې مى وه پر ښځو د زمانې خپلې) كله چې قوت مى دركړى وو تاته (اى عيسى) په روح القدس (جبريل يا انجيل يا اسم

---

[1] سورة النحل آية 102

[2] **سورة المائدة آية 110**

اعظم یا عیسوی روح) سره چې خبرې به دې کولې له خلقو سره په مهد (د مور په غیږ یا په ځانګو یا په طفولیت)کې او په حال د کهولت (پوره عمر)کې ، او کله چې مې درزده کړ تاته کتاب (لیکل) او حکمت (د شرعی احکامود ژورو خبرو علم) او تورات او کله چې جوړه به دی کړله له خټو ځنې په مثل د صورت د مارغه په اذن (حکم) زما پس پو کول به دی په هغه صورت کې پس شوبه هغه (هیئت) مارغه په اذن (حکم) زما او روغول به دی مورزادی ړوند او برګ (پس) په اذن (حکم) زما ، او کله چې راایستل به دې مړي (له قبرونو څخه او ژوندي کول به دې) په اذن (حکم) زما او کله چې مې بند کړ (شر د) بنی اسرائیلو له تانه (ای عیسی چې ستا د قتل اختیار ئې کړی وو) کله چې راوړي وو تا دوی ته واضح دلائل نو وویل هغو کسانو چې کافران شوي وو له دوی ځینې چې نه دي دغه معجزې ستا مګر سحر دی ښکاره (هر چاته).

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

تَعْرُجُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ. [1]

ترجمه : چې خیژی ملائکې پر ښتې او روح (جبریل) په طرف د هغه (مامور به ځای) په هغه ورځ کې چې ده اندازه د هغې پنځوس زره کاله (په نسبت سره کافرانو ته).

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

[1] **سورة المعارج آية 4**

يُنَزِّلُ الْمَلآئِكَةَ بِالْرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِ عَلَى مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ أَنْ أَنذِرُواْ أَنَّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ أَنَاْ فَاتَّقُونِ . [1]

ترجمه :نازلوي (الله) ملائکې سره له روح (اسرار د وحی) په امر (حکم) خپل پر هر چا چې اراده وفرمائي (د نبوت ئې) له بندګانو خپلو (او داسې فرمائي انبياووته) چې وويروئ (خبردار کړئ تاسې خلق) په دي چې بېشکه نشته برحق معبود مګر هم دا زه يم نو وويرېږئ تاسې له ما نه .

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

يَوْمَ يَقُومُ الرُّوحُ وَالْمَلَائِكَةُ صَفّاً لَّا يَتَكَلَّمُونَ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرحْمَنُ وَقَالَ صَوَاباً . [2]

ترجمه : په هغې ورځې (د قيامت)کې چې ودرېږي روح او د ملائکو صفونه صفونه . نه به کوي خبرې (هېڅوک له ويرې په باب د شفاعت کې مګر) پرته (علاوه) له هغه چې اذن حکم وکړي ده ته رحمن (د خبرو يا د شفاعت) او ويلې ئې وی صواب ښه خبره (په دنيا کې چې لا الـه الا الله ده) .

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

تَنَزَّلُ الْمَلَائِكَةُ وَالرُّوحُ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِم مِّن كُلِّ أَمْرٍ. [3]

ترجمه : نازلېږي ملائکې او روح په دغه شپه کې په اذن حکم د رب د هغوی . دپاره هر کار (تاکلي (مقرر) شوي په دغه راتلونکي کال کې)

---

[1] سورة النحل آية ٢
[2] سورة النبأ آية ٣٨
[3] سورة القدر آية 4

روح په قرآن کریم کې هغه شي ته هم ویل کیږي چې په کوم باندې انسان ژوندی وي .

الف : د آدم ν ژوند

الله χ فرمایي :

ثُمَّ سَوَّاهُ وَنَفَخَ فِيهِ مِن رُّوحِهِ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ قَلِيلاً مَّا تَشْكُرُونَ. [1]

ترجمه: بیا ئې برابر کړ (قالب د) هغه او پو (داخل) ئی کړ په دغه (قالب)کې له روح خپل څخه (چې مخلوق د ده دی) او وئې ګرځول (در ئې کړل) تاسې ته (ای د آدم اولاده) غوږونه او ستر ګې (چې پرې اورئ ! او وینئ)! او زړونه (چې عقل او فکر پرې کوئ) خو سره د دغو نعمتونو بیخي لږ شکر کوئ تاسې !

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ . [2]

ترجمه :پس کله چې برابر کړ ما (قالب د) هغه (په ښه شکل سره) او پو کړ ما په هغه قالب کې له روح خپل پس پریوځئ (تاسې ټول ای پرښتو ! تعظیماً) ده ته سجده کوونکی

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

الَّذِي أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُ وَبَدَأَ خَلْقَ الْإِنسَانِ مِن طِينٍ (7) ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُ مِن سُلَالَةٍ مِّن مَّاء مَّهِينٍ (8) ثُمَّ سَوَّاهُ وَنَفَخَ فِيهِ مِن

---
[1] سورة السجدة آیة ۹
[2] سورة ص آیة ۷۲

رُّوحِهِ وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ قَلِيلاً مَّا تَشْكُرُونَ(9).[1]

ترجمه : هغه الله چې ښا يسته کړي ئې دي هر شى چې پيدا کړي ئې دي هغه (هر موجود بالخاصه انسان) او شروع کړى ئې دى پيدايښت د انسان (يعنى آدم) له خټې څخه بيا ئې پيدا کړ نسل اولاد د ده له خلاصې له اوبو ضعيفو حقيرو څخه بيا ئې برابر کړ (قالب د) هغه او پو (داخل) ئى کړ په دغه (قالب)کې له روح خپل څخه (چې مخلوق د ده دى) او وئې گرځول (در ئې کړل) تاسې ته (اى د آدم اولاده) غوږونه او ستر گې (چې پرې اورئ ! او وينئ)! او زړونه (چې عقل او فکر پرې کوئ) خو سره د دغو نعمتونو بيخي لږ شکر کوئ تاسې !

د حضرت عيسى ν ژوند

فَاتَّخَذَتْ مِن دُونِهِمْ حِجَاباً فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَراً سَوِيّاً .[2]

ترجمه :پس ونيوله له طرفه د دوى پرده (دپاره د غسل د حيض) نو وليږه موږ دې ته (پس له غسل او اغوستلو د جامو) روح خپل پس شکل خپل ئې جوړ کړ دې ته د سړى کامل (تام الخلقة د نورانى ځلمي) .

په بل ځاى کې اللهχ فرمايي :

وَالَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهَا مِن رُّوحِنَا وَجَعَلْنَاهَا وَابْنَهَا آيَةً لِّلْعَالَمِينَ .[1]

---

[1] سورة السجدة آية ٩

[2] سورة مريم آية ١٧

ترجمه: او (یاده کړه ای محمده ! قصه د) هغې (جینئ مریمې) چې پاک ئې ساتلی وو اندام خپل (له نکاح او له سفاح څخه) پس پو کړ موږ په (ګریوان د) هغې کې له روحه خپله او ومو ګرځوله دغه (مریمه) او زوی د دې (عیسی) دلیل (د کامل قدرت خپل) دپاره د خلقو.

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهِ مِن رُّوحِنَا وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ. [2]

ترجمه: او (مثل بیان کړی دی الله د) مریم O لور د عمران هغه چې ساتلی ئې وو ځای د شهوت خپل (له نکاح او سفاح څخه) نو ومو پوکل (په ګریوان د هغې) کې له روح خپل څخه او تصدیق باور کړی و هغې په خبرو د رب خپل باندې او په کتابونو د ده او وه دا له امر منونکیو فرمان وړونکیو څخه .

روح په قرآن کریم کې وحی ، هدایت او کتاب ته هم ویل شوی دی ځکه لکه په روح سره چې انسان ژوندی کیږي پدې سره هم په انسان کې رښتینی ژوند راځي چې بیا انسان د ښه او خراب سمې او کږې لارې فرق ښه کولی شي .

اللهχ فرمایي :

وَكَذَلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحاً مِّنْ أَمْرِنَا مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ وَلَكِن جَعَلْنَاهُ نُوراً نَّهْدِي بِهِ مَنْ نَّشَاء مِنْ عِبَادِنَا وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ . [1]

---

[1] سورة الأنبياء آية ٩١

[2] سورة التحريم آية ١٢

ترجمه: او هم داسې (لکه چې وحی مو کړې وه نورو انبياوو ته) وحی راوليږله موږ تاته (ای محمده !) روح (قرآن ، پرښته) په امر حکم خپل سره ، نه وې ته چې پوهيدې به چې څه دی کتاب او نه (پوهيدې په دې چې څه شی دی شرايع او) ايمان. وليکن ګرځولی دی موږ دغه (روح کتاب ، ايمان) داسې يوه رڼا چې سمه لياره ښيو په هغه سره هغه چاته چې اراده وفرمايو موږ له بندګانو خپلو ، او بېشکه ته خامخا ښودل کوې (خلقو ته) په طرف د لياري مستقيمې برابرې .

---

[1] سورة الشورى آية ٥٢

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ ذُو الْعَرْشِ يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِ عَلَى مَن يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ لِيُنذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ .[1]

ترجمه : (هم دغه الله) پورته كوونكى د درجو (د مؤمنانو) دى څښتن (مالک) د عرش دى رالېږي روح (جبرئيل يا پټې خبرې) په امر حكم خپل پر هغه ئې له بند ګانوخپلو دپاره د دې چې وويروي (خلق) له ورځې د ملاقات (چې په کې يو ځای كيږي خالق او مخلوق او نور)

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا رَضِيَ الله عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ أُوْلَئِكَ حِزْبُ الله الَا إِنَّ حِزْبَ الله هُمُ الْمُفْلِحُونَ.[2]

ترجمه : او قوى كړي ئې دي دوى په غيبي فيض مدد له نزده خپل څخه ، (او قوي كړي قوت وركړى دى الله تعالى دوى لره په روح رحمت نصرت خپل سره يا په نور رڼا د زړه يا په قرآن عظيم الشان سره او داخل به كړى دوى په جنتونو كښى چه بهيږى له لاندى د (ونو او مانيود هغو (ځلور قسمه) ويالى تل به وى دوى په هغو (جناتو) كښى ، راضي شو الله له دوى څخه (په طاعت سره) او راضى شول دوى له الله څخه (په موندلو د جنت) . (او خوشال شو الله تعالى له دوى نه په سبب د طاعت سره په دنيا كښى او خوشاله شول دوى له الله تعالى څخه په موندلو د لقاء او رضاء او عطاء د جنت په آخرت كښى) دغه (خلق) دى حزب –

---

[1] سورة غافر آية 15

[2] سورة المجادلة آية 22

لښکر د الله، واورئ ! خبردار شئ ! چه بېشکه لښکر د الله چې دی هم دوی دي په مراد رسیدونکی بریالیان (کامیاب) .

رَوح لفظ (د (ر) په زبر سره) په قرآن کریم دری ځله راغلی دی .

د اللهχ د رحمت او نعمت په معنی .

اللهχ فرمايي :

**يَا بَنِيَّ اذْهَبُواْ فَتَحَسَّسُواْ مِن يُوسُفَ وَأَخِيهِ وَلاَ تَيْأَسُواْ مِن رَّوْحِ الله انَّهُ لاَ يَيْأَسُ مِن رَّوْحِ الله الاَّ الْقَوْمُ الْكَافِرُونَ .** [1]

ترجمه : ای ځامنو زما ، لاړ شئ نو لټونه و کړئ له (حاله د) یوسف او له حال د ورور د ده او مه نا امیده کیږئ له فیضه د اللهχ بېشکه شان دا دی چې نه نا امیده کیږی له فیضه د اللهχ څخه مګر قوم کافران (منکران له الله χاو صفاتو د اللهχ).

د راحت ، استراحت او د اللهχ (بلا کیف) مخ ته د کتلو په معنی .

اللهχ فرمايي :

**فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ وَجَنَّةُ نَعِيمٍ .** [2]

ترجمه :نو (شته ده لره) راحت هوسائي(آرم) او ښه رزق او جنت ډک له نعمتونو څخه .

---

[1] **سورة يوسف آية 87**
[2] سورة الواقعة آية ٨٩

# د روح حقیقت

او لکه مخکې چې تېر شول چې څرنګه الله χ ددې روح پیدا کونکی دی نو مکمل علم یوازې له ده سره دی پدې اړه بل چا ته پوره علم نشته سره ددې چې په اوس وخت کې د انسانانو دماغ کوم کوم شي ته رسېدلي دي او ډېر لټون یې کړی دی او د ډېرو شیانو په اړه یې علوم حاصل کړي دي لکن د روح معامله د دوی په وړاندې اوس هم هغه معمی ده چې په اړه یې خلک صرف دومره پوهیږي چې الله χ څه ویلي دي خو خلکو په مختلفو ډولونو سره د روح تعریف کړی دی او هر چا د خپلو معلوماتو په اړه تعریف کړی دی زما د ابن قیم ρ الفاظ ډېر خوښ شوي دي چې دروح په تعریف کې یې ویلي دي زه د هغه مبارک ρ الفاظ ستاسې په وړاندې ایږدم هغه فرمایي :

جسم مخالف بالماهية لهذا الجسم المحسوس، وهو جسم نوراني علوي خفيف حي متحرك، ينفذ في جوهر الأعضاء ويسري فيها سريان الماء في الورد، وسريان الدهن في الزيتون، والنار في الفحم، فما دامت هذه الأعضاء صالحة لقبول الاثار الفائضة عليها من هذا الجسم اللطيف، بقي هذا الجسم اللطيف متشابكا بهذه الأعضاء، وأفادها هذه الآثار من الحس و الحركة و الإرادة، وإذا فسدت هذه الأعضاء بسبب إستيلاء الأخلاط الغليظة عليها، وخرجت عن قبول تلك الآثار فارق الروح البدن، وانفصل إلى عالم الأرواح.

ترجمه : روح یو بل جسم دی چې په ماهیت کې ددې ښکاره کېدونکي او محسوس کېدونکي جسم نه بدل او مخالف دی او هغه یو نوراني ، سپک ، ژوندی او متحرک جسم دی د بدن په برخو کې داسې سرایت

کوي لکه د ګلاب په ګل کې چې د ګلابو اوبو سرایت کړی وي ، یا لکه په زیتون میوه کې چې د زیتون تیلو حلول کړی وي ، یا لکه په سکروټه کې څنګه اور حلول کړی وي ، ترڅو چې دا اندامونه د هغه اثارو قبول کوي چې ددې نوراني جسم نه ورکول کیږي نو دا باریک او لطیف جسم په اندامونو کې پاتې وي او هغوی ته د ژوند اثار ورکوي لکه حس ، حرکت ، اراده او داسې نور او کله چې دا اندامونه خراب شي او نور ددې لطیف جسم اثار نشي زغملی او برداشت کولی نو بیا روح ورڅخه لاړ شي او له بدن څخه بېل شي او د ارواح عالم ته لاړ شي .

د روح او نفس په مینځ کې څه فرق دی؟

په قرآن کریم کې چې د ژوند په اړه خبره کیږي نو د روح لفظ نه بلکه د نفس لفظ کارول کیږي او کله چې د مړه په اړه خبره کیږي هلته بیا روح لفظ راځي دمثال په ډول اللهχ فرمایي :

أَن تَقُولَ نَفْسٌ يَا حَسْرَتَى علَى مَا فَرَّطتُ فِي جَنبِ الله وَإِن كُنتُ لَمِنَ السَّاخِرِينَ . [1]

ترجمه : (چابکي کوئ تاسې په تعمیل د قرآن باندې پخوا له هغه)چې ووائي یو نفس ای ارمان او ندامت مې دی پر هغه چې تقصیر مې کړی دی طرف (په حق د طاعت) د الله کې او بېشکه چې وم زه خامخا له مسخره کوونکیو (په مؤمن به) څخه .

پدې ځای کې دا نفس خبرې کوي او څه وایي او چې خبرې کوي نو ښکاره خبره ده چې هغه ژوندی وي او له بدن سره لګېدلی وي .

[1] سورة الزمر آية ٥٦

په بل ځای کې الله χ فرمايي : فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَاء بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ .[1]

ترجمه : پس نه دی معلوم هیڅ نفس ته (نه پرښتې او نه نبي ته) هغه شی چې پټ کړی شوي دي دوی ته له یخوالي د ستر ګو نه دپاره د جزا هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به ئې.

په بل ځای کې الله χ فرمايي : وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّاهَا (7) فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا (8) .[2]

ترجمه : او (قسم دی) په نفس او په هغه (ذات باندې)چې برابر کړي ئې دي (اندامونه د) هغه پس ورغوځولې شوولې ئې ده په زړه د ده کې بدي د ده او نیکي د ده .

## جسد

بله برخه د انسان بدن دی چې ورته جسم او جسد ویل کیږي

په جسم او جسد کې څه فرق دی؟

په قرآن کریم کې کله چې بدن له روح سره ملګری (د ژوندي انسان بدن ذکر کیږي) نو بیا ورته جسم ویل کیږي او که له روح نه بغیر ذکر کیږي بیا ورته جسد ویل کیږي د مثال په ډول کله چې الله χ په قرآن کریم کې د طالوت ν نه خبره کوي نو الله χ فرمايي :

إِنَّ الله اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ .[1]

---

[1] سورة السجدة آية ١٧
[2] سورة الشمس

ترجمه : بېشکه الله غوره کړی دی دا طالوت په تاسې باندې او زيات کړی ئې دی هغه له جهته د پراخي په علم او (په) جسم کې .

ځکه پدې ځای کې اللهχ د ژوندي انسان په اړه خبري کوي نو ځکه يې لفظ د جسد نه بلکه د جسم ورته استعمال کړو همدارنګه اللهχ د منافقينو په اړه فرمايي :

وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ أَجْسَامُهُمْ . ٤[2]

ترجمه : او کله چې ووينې ته دوی په تعجب کې تا اچوی اجسام جثې بڼې د دوی له جهته د ښا ئست .

او په کوم ځای کې چې اللهχ د داسې بدن ذکر کوي چې په هغه کې روح نه وي نو هلته جسد ذکر کوي لکه اللهχ چې د هغه خوسې (سخې) په اړه فرمايي چې سامري جوړ کړی وو هلته اللهχ فرمايي : **فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلاً جَسَداً لَهُ خُوَارٌ** . [3]

ترجمه : نو راوويست دوی ته يو خسی يو جسد چې وو ده ته غږ (د خسي)

په بل ځای کې اللهχ د پيغمبرانو په اړه دا نفي کوي چې ګواکي هغه دې بې روحه مخلوق وي اللهχ

---

[1] سورة البقرة آية ٢٤٧

[2] **سورة المنافقون آية**

[3] **سورة طه آية ٨٨**

فرمايي : وَمَا جَعَلْنَاهُمْ جَسَداً لَّا يَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَمَا كَانُوا خَالِدِينَ .[1]

ترجمه : او نه وو ګرځولی موږ (دغه پخوانی رسولان) داسې جسدونه چې نه ئې خوړ طعام (خوارړه) او نه وو دوی تل پاتی کيدونکي (په دنيا کې بلکه طعام به ئی خوړ او مړه کېدل به هم)

او په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَانَ وَأَلْقَيْنَا عَلَى كُرْسِيِّهِ جَسَدًا ثُمَّ أَنَابَ (34) .[2]

ترجمه :او خامخا په تحقيق ازمويلی دی موږ سليمان او غور ځولی مو وو پر تخت د ده يو جسد (بی روحه) بيا رجوع و کړه ده (الله ته).

په پورتني آيت کې اللهχ د يو بدن خبره کوي چې روح پکې نه وو نو ځکه يې لفظ د جسد کارولی دی .

نو لنډه خبره دا چې قرآن کريم کله بدن ته جسم وايي کله چې د ژوندي بدن په اړه خبره وي او کله ورته جسد وايي چې د مړه بدن په اړه خبره وي هغه چې روح پکې نه وي .

دا روح او جسد چې يو له بل نه سره بېل شي ديته مرګ ويل کيږي

## مرګ

---

[1] سورة الانبياء آية ٨
[2] سورة ص

مرګ د دنیا آخري منزل او د آخرت له منزلونو څخه لمړی منزل دی ..

مرګ یوه حادثه ده چې هرژوندي شي ته به ور واقع کیږي او انسان له دنیا څخه آخرت ته نقل کوي ...

مرګ یو پل دی چې یوه ډله خلک وربانديې جهنم ته ځي او یوه ډله خلک وربانديې جنت ته ځي ...

مرګ عدم نه دی بلکه له یو ډول ژوند نه (دنیا) نه بل ډول ژوند (برزخ) ته نقل کېدل دي ...

مرګ هغه پیاله ده چې هر ژوندی به یې څښي او د نه څښلو اختیار پکې نشته ...

مرګ د ډار شی نه دی بلکه د ډار خبره پکې داده چې لدې دنیا نه وروسته ته څه ډول ځای ته ور روان یې او د هغه کسانو لپاره چې هغوی د آخرت غم کړی وي مرګ د ډار خبره نه ده او هغوی ورڅخه نه ډاریږي بلکه ورته خوشحالیږي لکه چې رسول اللهγ ته اختیار ورکړل شو چې دنیا غواړې که آخرت ؟ رسول اللهγپخپله ویل بل الرفیق الاعلی ....

مرګ د ځینې خلکو لپاره راحت دی چې ددنیا د ژوند تکلیفونه یې له اوږو څخه لري کړي ...

مرګ په دنیا کې د ټولو نعمتونو ختمونکی دی او له انسان څخه دا ټول نعمتونه بیلوي ...

مرګ هغه دروازه ده چې پدې بانديې ننوتل د هر ژوندي لپاره ضروري دي او انسان له دنیایي ژوند څخه برزخي ژوند ته نقل کوي ... لکه ټول انسانان چې یو وخت بالکل موجود نه وو بیا د

اللهχ د كُن په كلمه باندې موجود شول ، په ولادت سره دنيا ته راغلل ، په مرګ سره به بېرته له دنيا نه لاړ شي ، په بعث (له قبر نه په پورته کېدلو سره) به د آخرت ژوند ته لاړ شي .

مرګ يوه وېره او يو رعب لري ځکه دا موږ له هغه ژوند نه لرې کوي له کوم سره چې موږ عادت يو او د هغه ژوند جدايي موږ ته ډېره سخته ښکاره کيږي.

مرګ موږ يو داسې ځای ته ور نقل کوي چې هلته ټول خلک په دوه ډوله دي يو نېکبخت او بل بد بخت او موږ ته نه ده معلومه چې موږ به کومې ډلې ته ور نقل کوي .

مرګ له ځان سره وېره لري ځکه دا موږ د اللهχ په وړاندې دروي او موږ ته هېڅ مهلت او وخت نه راکوي چې موږ هغه څه سم کړو چې موږ په خپل ژوند کې خراب کړي وي .

مرګ يوازينی هغه حقيقت دی چې هرچا منلی دی او هېڅوک ورڅخه انکار نه کوي حتی چې غير مسلم يې هم مني اللهχد مشرکينو په اړه نقل کوي چې هغوی به ويل :

وقالوا إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ . [1]

ترجمه : او وائي دوی نه دی ژوندون مګر هم دا ژوندون زمونږ دنيوي (چې لږ او نژدې دی) او نه يو موږ بيا راپاڅولی شوي (راپاڅېدونکي له قبرونو څخه حساب او کتاب ته) .

په بل ځای کې اللهχ فرمايي  چې مشرکينو به ويل :

[1] سورة الانعام آية ٢٩

وَقَالُوا مَا هِيَ إِلا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا يُهْلِكُنَا إِلا الدَّهْرُ[1]

ترجمه :او وائي(كفار) نشته ژوندون مگر هم دغه ژوندون زمونږ دى په دغې دنيا كې چې مړه كيږو او ژوندي كيږو او نه مو هلاكوي مگر زمانه.

مرگ يو داسې حقيقت دى چې په وجود يې د هرچا يقين دى او له څرنگوالي نه يې هېڅوک نه دي خبر ځكه هر هغه څوک چې مرگ و څَكي هغه بيا دنيا ته نه راځي چې موږ ته قصه وكوي او موږ خبر كړي چې مرگ څنگه شى دى .

مرگ د انسانانو لپاره رحمت دى كه مرگ نه واى له يوې خوا به په دنيا كې اوس د خلكو ځائښت نه كېدو او له بله پلوه به ډېر خلک په خپل ژوند كې ډېر په تنگ وو چې موږ تصور وكوو كه اوس د موږ څلورم ، پنځم او پورته نيكونه ژوندي واى څنگه ژوند به يې وو؟ څنگه حال به

يې وو ؟ دا په هغوى او په موږ باندې د الله χ رحمت دى چې هغوى تر اوسه پورې ژوندي نه دي پاتې شوه همدارنگه كه فرعون او نمرود تر اوسه پورې ژ وندي واى څومره ظلمونه به يې كړي وو؟.

مرگ ستا لپاره د خوشحالي خبره ده كه ته سم مسلمان وې او د كافر لپاره د وېرې او ډار خبره ده ځكه مرگ هر چا ته دژوند د كړو وړو نتيجه په لاس وركوي .

مرگ انسان د دنيا د ازاد ژوند نه تنگ قبر ته ور ننباسي چې هغه به د ځينې خلكو لپاره روضة من ريا ض الجنة (د جنت د باغيچو نه يوه باغيچه) او يا الله χ مه كړه حفرة من حفر النار (د دوزخ له كندو څخه يوه كنده) وي .

[1] . سورة الجاثية آية ٢٤

مـرګ عجیب دی لـکـه څـنګـه چې ژونـد ختمـوي او خرابـوي همداسې یـې جوړوي هم ځـکـه یـو انـسان چې پـدې بـانـدې یـې یـقـین شي چې دی بـه مړ کـیـږي نـو د ژونـد پـه صحیح مـعنی کې پـه جـوړولـو کې بـه کـوښښ وکـوي .

مـرګ د ځینـو خـلـکـو نـوم او نـشان لـه دنـیـا نـه ورک کـړي دا هغه خلـک وي چې پـه دنـیـا کې یـې پـخـپـلـه نـوم او نـشان نـه وي پـریـښی او هغه کـسان چې داسې کـارونـه یـې کـړي وي چې نـوم یـې سـاتـي مـرګ د هغوی نـوم نـشي پـټـولـی او د هغوی د کـارنـامـو سره بـه ټـول عمر د دوی نـوم ژونـدی وي .

د ژونـدي شي لـه بـدن نـه روح وتـلـو تـه مـرګ ویـل کـیـږي امـام قـرطبي ρ فـرمـایـي مـرګ فـنـاء او عدم نـه دی بـلـکـه د روح او بـدن پـه مـیـنـځ کې جدایـي ده او د دوی پـه مـیـنـځ کې چې کـومـه د حیـلـولـة علاقـه ده د هغې ختمېدل دي چې ددې تـعلـق د ختـمېدلـو نـه وروستـه انـسان لـه یـو دار نـه بـل دار تـه مـنـتـقـل شي .

لـکـن رسـول اللهγ فـرمـایـلـي دي چې مـرګ تـه بـه د قـیـامـت پـه ورځ د یـوه ګډ (پـسه) شکـل ورکـړل شي او حلال بـه کـړل شي پـدې اړه د حضرت ابـي سعیـد الـخدري η نـه روایـت دی هغه فـرمـایـي : رسول اللهγ فـرمـایـل : د قـیـامـت پـه ورځ بـه مـرګ د پـسه پـه شکـل کې راوستـل شي او اواز بـه وکـول شي ای جنـتـیـانـو... ! هغوی بـه سرونـه ور پـورتـه کـړي او ور وبـه ګـوري دوی تـه بـه وویـل شي دا پـېژنـئ؟ دوی بـه ورتـه ووایـي هـو دا خـو مـرګ دی او ټـول خـلـک (جنـتـیـان) بـه یـې وویـنـي او ذبـح بـه کـړل شي بـیـا بـه پـه همدې ډول د دوزخ خـلـکـو تـه اواز وکـول شي هغوی بـه هم ټـول وګـوري پـوښتـنـه بـه تـرې وشي دا پـېژنـئ؟ دوی بـه ورتـه ووایـي هـو دا مـرګ دی بـیـا بـه یـې د دوزخ خـلـک هم ټـول وګـوري او د دوی تـر نـظر لانـدې بـه

حلال کړشي بیا به د جنت خلکو ته وویل شي : ای جنتیانو بس تاسې همیشه دلته پاتې یاست مرګ نشته او دوزخیانو ته به هم وویل شي : تاسې همیشه دلته پاتې یاست او مرګ نشته بیا رسول ﷺ دا آیة تلاوت کړو : **وَأَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لا يُؤْمِنُونَ** .[1]

ترجمه :او وویروه ته دوی له ورځې دحسرت (او ارمانه) کله چې فیصله کړل شي کار (دحساب او کتاب) حال دا دوی (په دنیوی) غفلت کې دی او دوی ایمان نه راوړي.

هغه علوم چې د ژوندي مخلوقاتو په اړه بحث کوي هغوی وایي چې مرګ د یو ژوندي حیوان له ژوند څخه قطع کېدل دي او په یو ژوندي حیوان کې ژوند ختمېدل دي نو چې کله په یو ژوندي حیوان کې ژوند ختم شي نو هغه بیا نه خوراک کولی شي ، نه څښاک کولی شي ، نه آورېدل کولی شي ، او نه په څه باندې پوهیږي او نه تنفس تناسل ، حرکت ، نمو او نور د ژوند کارونه کولی شي او ژوندی ددې په خلاف وي هغه دا مذکور هرڅه او نور د ژوندیو فعالتیونه کولی شي .

او کله چې له بدن څخه روح وزي نو همدا اصلي مرګ دی او ددېنه وروسته بیا دا حیوان او یا انسان په هېڅ ډول باندې نشي را ژوندی کېدلی او کله داسې وي چې صرف د انسان زړه د څه وخت لپاره کار پریږدي که دا کار پرېښودل یې د اوږده وخت لپاره شي نو بیا روح تر وزي او که د مختصر وخت لپاره وي دېته الموت السریر Clinical Death وایي دا هم لکه مرګ داسې حالت وي د تنفس نظام ودریږي ، زړه کار پریږدي او په بدن کې د ویني جریان هم بند شي په پخوا

[1] سورة مريم آية ٣٩

وختونو کې به دا هم مرګ ګڼل کېدو او چې چا ته به لدې حالت نه وروسته بېرته ژوند نصیب شو نو هغه کس به له مرګ نه وروسته را ژوندی ګڼل کېدلو نو دا الموت السریر Clinical Death دا طبي اصطلاح ده کوم شیان چې په حیوان کې د ژوندي کېدلو لامل او سبب وي د هغه ختمېدلو ته وایي که هغه د وینې جریان وي ، که د زړه فعالیتونه وي او که د تنفس نظام وي نو پدې وخت کې هم په انسان کې روح وي ترڅو چې هغه ورڅخه وتلی نه وي نو انسان بیا هم ژوندی ګڼل کیږي او داسې ګڼل کیږي چې دا ژوندی دی او څه اعظاوو او څه نظامونو پکې کار پریښی دی سره ددې چې د علم الطب ماهرین وایي چې انسان پدې حالت کې تر اوږده وخته پورې نشي پاتې کېدلی لکن بیا هم ترڅو چې دا حالت وي نو ژوندی وي .

خو دا د روح وتل له ژوندي شي نه د هر ژوندي شي لپاره مقرر کړل شوي دي او په هر شي کې چې روح موجود دی که هغه انسان دی که نور غیر ناطقه حیوانات دي ، که حشرات دي ، که په بحر کې حیوانات دي ، که د بحر په تل کې ژوند کونکي حیوانات دي یو وخت به ورڅخه روح وزي او ددې روح د وتلو لپاره یو معلوم وخت دی چې الله χ ورته په خپله معین کړی دی او هغه وخت چې پوره شي هېڅ ژوندی تر هغه وروسته ژوندی نشي پاتې کېدلی نه یوازې دا بلکه په دنیا کې چې څومره مخلوقات او کائنات دي ددې ټولو عمر او وخت معین کړل شوی دی یو وخت به ختمیږي لکه الله χ چې فرمایي.

اَلَمْ تَرَ أَنَّ الله يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى وَأَنَّ الله بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ.[1]

ترجمه : آیا نه وینې ته (ای مخاطبه بلکه وینې یې) چې بېشکه اللهϕ ننباسي شپه (په کامل قدرت خپل سره) په ورځ کې او ننباسي (اللهϕ) ورځ په شپه کې او مسخر کړی په کار اچولي ئې دي تاسې ته لمر او سپوږمی هر یو (له دغو دواړو نه لکه نور سیارات) روان دي (په آسمان خپل کې) تر ټاکلې (مقرر کړې) مودې پورې او بېشکه الله په هر هغه څه چې تاسې ئې کوئ ښه خبر دی.

او هغه زوړ والی چې د ژوندي شي او په خاصه توګه د انسان په بدن کې راځي چې بیا په هغه وخت کې هېڅ اندام په صحیح توګه خپله وظیفه سر ته نشي رسولی غوږونه کار پریږدي ، نظر کمزوری شي ، هډوکي نازک شي ، بدن سست شي ، حافظه کمزورې شي ، غاښونه وغورځیږي ویښته سپین شي او په تویېدو باندې شروع وکوي دا انسان ته خبر ورکوي چې نور د په دنیا کې وخت په ختمېدو دی او که انسان وربانديې پوه شي دا نښې په ښکاره سره انسان ته وایي چې ستا وخت ختمېدونکی دی .

لکه اللهχچې فرمایي : **وَمَنْ نُعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ أَفَلَا يَعْقِلُونَ.**[2]

ترجمه :او هر چاته چې اوږد عمر ورکړو موږ هغه ته نو نسکور به کړو هغه په پیدایښت کې ، آیا

---

[1] **سورة لقمان آية 29**

[2] **سورة يس آية 68**

پس نه کوی دوی عقل (چې نه یواځې الله په معمروالی او تنکیس بلکه په بعث هم قادر دی.)

په بل ځای کې اللهχ فرمایي : ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوا أَشُدَّكُمْ وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا. [1]

ترجمه : بیا راوباسو موږ تاسې (له ګېډو د میندو ستاسې حال دا چې) طفل (وئ) بیا (پالو تاسې) تر هغه پورې چې ورسیږئ تاسې کمال او قوت خپل ته (جسماً او عقلاً) او ځینې له تاسې څخه هغه دي وفات کولی شي (له رشد او قوت څخه وروسته یا پخوا) او ځینې له تاسې څخه هغه دي چې رد کاوه شي (یعني ژوندی وي) تر ناکاره عمره پورې دپاره د دي چې نه پوهیږي وروسته له پوهې په هیڅ شي (د خپلو ټولو قواوو د بېکاره کېدلو له کبله)

نو المهم دا چې په دنیا کې څومره ژوندي شیان دي نارینه که زنانه دي ، ماشومان که بوډا ګان دي ، مالداران که غریبان دي ، بیماران او که ډاکټران دي ، قوماندانان که فوځیان دي ، رئیسان او که لاندې د لاس خلک دي ، بادشاهان که وزیران دي ، کبرجن او که عاجز خلک دي له هرڅه نه به د ځان په ساتلو کې کوښښ وکوي لکن د مرګ نه هېڅوک د تېښتې ځای نه لري آخر به مړه کیږي او په هماغه وخت او هماغه ځای کې به مړه کیږي چې په کوم ځای کې ورته مرګ مقرر شوی وي نه یې یوه لوېشت له هغه ځا نه لرې کولی شي او نه یې یوه ثانیه له خپل وخت نه وروسته کولی شي .

[1] سورة الحج آية 5

پـدې اړه مـاتـه يـوه قـصه را يـاديږي چې د حضرت داود v سره يـو وزيـر وو کـلـه چې هغه وفـات شو بـادشاهي يـې حضرت سـلـيمـان v تـه پـاتـې شوه بـيـا هغه وزيـر لـه ده v سره هم وزيـر وو يـوه ورځ چې د څـاښت پـه وخت کـې حضرت سـلـيمـان v نـاست وو او دا وزيـر هم ورسره وو مـجـلس تـه يـو نـا اشنـا کس را نـنـوتـلـو او د حضرت سـلـيمـان v سره پـه خبـرو شو او د خبـرو پـه دوران کـې يـې دې وزيـر تـه پـه ځيـر ځيـر کـتـل دده لـه کـتـلـو نـه وزيـر وډار شو کـلـه چې دا کس لـه مـجـلس نـه لاړو دې وزيـر حضرت سـلـيمـان v تـه وويـل : ای د اللهχ نـبـي مـاتـه ووايـه دا کس څوک وو؟ ده خو زه پـه کـتـلـو کـتـلـو سره ډېـر زيـات وډار کـړم؟ حضرت سـلـيمـان v ورتـه وويـل : دا انـسان نـه وو د انـسان پـه شکـل کـې مـلـک الـمـوت v وو وزيـر نـور هم وډار شو او پـه ژړا شو حضرت سـلـيمـان v تـه يـې وويـل : ای د الله χ نـبـي زه لـتـا نـه سوال کـوم مـا لـدې ځای نـه لـرې کـړه زه لـدې کس نـه وډار شوم بـاد تـه د امـر وکـوه چې مـا لـرې چېـرتـه بـوزي هنـد خـوا تـه .. دده پـه غوښتـنـه حضرت سـلـيمـان v همـداسې وکـول بـاد هغه کس يـوړو هنـد تـه چې د حضرت سـلـيمـان v د ځای نـه (پـه کـوم ځای کـې چې هغه وو) ډېـر لـرې وو سبـا چې کـلـه مـلـک الـمـوت v بـيـا راغلـو حضرت سلـمـان v ورتـه وويـل : پـرون دې پـه کـتـلـو کـتـلـو کـې زمـا مـلـگری ډار کـړی وو ولـې دې هغه تـه پـه ځيـر ځيـر کـتـل؟ مـلـک الـمـو ت v ورتـه وويـل : ای د اللهχ نـبـي زه پـه سحر کـې تـاتـه راغلـم مـات الله χ امـر کـړی وو چې د هغه نـه پـه هنـد کـې پـه مـاسپـښيـن کـې روح واخلـم نـو ومې کـتـل چې هغه لـتـا سره وو نـو زه حيـران شوم چې زه دده روح پـه هنـد کـې څنـگه واخلـم؟ نـو ځکـه مې ورتـه کـتـل ...

حضرت سلیمان ν ورته وویل : نو بیا د څه وکول؟

ملک الموت ν وویل : زه هغه ځای ته لاړم چې اللهχ ما ته امر کړی وو چې دده روح پکې واخلم زه هلته ورغلم چې دی لما نه مخکې هلته رسېدلی وو نو روح مې ورڅخه واخیست ...[1]

اللهχ رښتیا ویلي دي : **قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِي تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مُلَاقِيكُمْ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَى عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ.**[2]

ترجمه :ووایه (ای محمده ! دغو یهودانو ته) بېشکه مرګ هغه چې تښتئ تاسې له هغه نه (او نه ئې غواړئ) پس بېشکه هغه مرګ ضرور رسیدونکی دی تاسې ته بیا به بوتلی شئ تاسې په لوري د (هغه) ښه پوهېدونکي په پټو او په ښکاره ووبانـدې پس خبر به کړي تاسې په هغو (کارونو باندې) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې نو جزاء به پرې درکړي).

نو لنډه دا چې ټول خلک اوتر هر فن پورې تړلي خلک پدې متفق دي چې کله روح له انسان څخه بهر شي دا کس مړ شي او ددېنه وروسته هم انسان موجود وي خو په دوه برخو ویشل شوی چې یو د هغه جسد وي او بغیر د کوم حس او حرکت نه پروت وي د اسلامي هدایاتو له مخې د هغه تکفین او تجهیز جنازه او نور مراسم په ژوندیو خلکو لازم دي بل د هغه روح وي چې هغه له بدن څخه بېل شي هغه موجود وي یا په عذاب کې او یا په نعمتونو کې ځکه روح پخپله په ځینو شیانو باندې په عذاب کیږي لکه خفګان ، غم او په ځینو شیانو باندې لذت اخلي لکه خوشحالي ، ازادي راحت او

---

[1] **مصنف ابن ابي الشیبة و کتاب الزهد للامام احمد** ρ
[2] **سورة الجمعة**

داسې نور نو کله چې روح له بدن څخه بېل شي هغه څه چې په روح پورې یې تعلق درلود بغیر د تعلق د بدن نه هغه اوس هم په روح پورې تعلق لري اوکله چې روح له بدن څخه بېل هم وي هغه شیان ټول ورسره ملګري وي او هغه څه چې د روح سره تعلق درلود او د بدن هم دخل وو پکې هغه د انسان له مرګ سره یعني دروح له بدن څخه د بېلتون نه وروسته له روح سره څه ډول تعلق نه لري تردې چې روح بېرته بدن ته را وګرځي په قبر یا په آخرت کې نو مرګ دا معنی چې روح له بدن څخه بېل کړل شي او نور دا روح او دا بدن سره جدا شي او پدې جدایي سره ډېر لوی او غټ تحولات راشي د انسان ټوله دارایي او ملکیت دهغه له لاس نه وزي ، چې څه یې جمع کړي وي او را ټول کړي هغه اوس دده نه بلکه دده نه د پاتې ورثه وو حق دی او هغه کسان چې دده سره یې مینه لرله او همدردې یې ورسره وه هغوی ته دده یاد پاتې شي او هغوی تر معلوم وخته پورې ورپسې دردمند شي اوس ددې روح دوه حالتونه وي یا خو داسې وي چې دا کس له اهل الدنیا څخه وي هغه چې په دنیاوي خوشحالیو باندې خوشحالېدو ، ددنیا په لټه کې وو او هر وخت یې ددنیا غم په سر اخیستی وو او دده خوشحالي ټوله په دنیاوي شیانو باندې وه نو پدې حالت کې ددې روح غم د بدن څخه د جدایي نه وروسته ډېر زیات شي ، دردمند شي ، له ټولو خپلو خواهشاتو نه لرې شي او که چېرته دا انسان د اهل الاخرة څنې وي خوشحالي یې د اللهﷻ تر خوشحالي پورې تړلې وي او خوشحالي یې د اللهﷻپه ذکر سره وي نو کله چې دا روح له بدن څخه بهر شي نو خوشحالي یې زیاته شي او دا روح بیا خوشحال وي ځکه اوس ایله دی د خپل محبوب سره یوازې شي او ټول هغه شیان چې دی به یې له محبوب څخه مصروف کولو اوس دده څخه قطع شي ځکه په دنیا کې چې څومره شیان دي

که هرڅنګه وي دا انسان د الله χ له ذکر نه مصروف کوي .

او کله چې انسان مړ شي نو هغه څه چې ده ته د ژوند په حالت کې نه ښکاره کېدل اوس به ورښکاره شي داسې مثال یې وي لکه څوک چې ویده وي او په دنیا کې ډېر ښه شیان وي خو ده ته نه ښکاره کیږي کله چې را ویښ شي سترګې یې خلاصې شي هر شی ووینې همداسې دا خلک داسې وي لکه ټول چې ویده دي هغه چې وفات شي د هغه سترګې خلاصې شي او اول هغه څه چې دی یې وینې دده نیکي او بدي وي او دا ټول دده لپاره په کتابونو کې لیکل شوي وي او ده ته ورښکاره کړل شي دا ټول هغه څه دي چې ده ددنیا په سترګو دا شیان هېڅ نشوای لیدلی.

## مرګ په قرآن کریم کې

په قرآن کریم کې د اجل پوره کېدل یاد شوي دي او مطلب ترېنه مرګ وي الله χ فرمایي :

أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ الْقُرُونِ يَمْشُونَ فِي مَسَاكِنِهِمْ إِنَّ فِي ذَلِكَ لآيات لاوْلِي النُّهَى * وَلَوْلا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا وَأَجَلٌ مُسَمًّى . [1]

ترجمه : آیا پس نه ده ښکاره شوې (دغو کفارو ته دا) چې ډېر هلاک کړي دي موږ پخوا له دوی نه له اهل د زمانو چې ځي په (تشو) کلیو (منازلو) ځایونو د دوی کې بېشکه په دغه (اهلاک د منکرینو) کې خامخا ډېر دلائل (د عبودیت دی) خاوندانو د عقلونو ته . او که چیری نه وی هغه وینا چې پخوا ویلی شوی ده (له طرفه) د رب ستا

[1] سورة طه آیة ۱۲۸، ۱۲۹

(په تاخير د عذاب سره) نو خامخا وو به دغه (هلاک د دوی) لازم (له دوی سره) او که نه وی اجل (نيټه) معلومه (د عمر د دوی نو به دوی معذبېدل په دنيا کې).

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

وَأَنْفِقُوا مِنْ مَا رَزَقْنَاكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ أَحَدَكُمْ الْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلا أَخَّرْتَنِي إِلَى أَجَلٍ قَرِيبٍ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُنْ مِنْ الصَّالِحِينَ وَلَن يُووخِّرَ الله نَفْسًا إِذَا جَاء أَجَلُهَا وَالله خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ . [1]

ترجمه : او نفقه کړئ – ولګوئ تاسې له هغو مالونو څخه چې درکړي مو دي تاسې ته پخوا له هغه ځنې چې راشي يو ستاسې ته مرګ (او پريوځي له مبرات او خيرات) نو وبه وائي ای ربه ځما ولې دې وروستی نه کړ ما لره (يعنی څه به وشی که تاخير کړې موت) تر اجل نيټې نژدې پورې چې صدقه خيرات و کړم زه او شم زه له صالحانو نيکانو څخه (په موندلو د مافات سره نو فرمائي اللهχ) او له سره به نه وروستی کوی اللهχ هيڅ نفس لره (له مرګه) کله چې راشی نيټه ئې او اللهχ ښه خبردار دی په هغه څه (ښه او بد) چې کوی ئې تاسې (نو جزا به پری درکړی).

په قرآن کريم کې زهوق النفس (راوتل د ساه ګانو) ياد کړل شوي دي او مطلب ترېنه مرګ وي اللهχ فرمايي :

فَلاَ تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَلاَ أَوْلاَدُهُمْ إِنَّمَا يُرِيدُ الله لِيُعَذِّبَهُم بِهَا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنفُسُهُمْ وَهُمْ كَافِرُونَ . [2]

---

[1] سورة المنافقون آية ١٠، ١١
[2] سورة التوبة آية ٥٥

ترجمه : نو په تعجب کې دې نه آچوي تا (ډېر) مالونه د دوی او نه (ډېر) اولاد د دوی (ځکه چې ګرد (ټول) استدراج دی) ، بېشکه هم دا خبره ده چې اراده لري الله د دې چې عذاب ورکړی دوی ته په سبب د هغو (شیانو) په دغه ژوندانه دنیوي کې او (په سختي او غم) راووځي ارواح (ساوی) د دوی حال دا چې دوی کافران وی (او په کفر کې مړه شی)

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

**وَلاَ تُعْجِبْكَ أَمْوَالُهُمْ وَأَوْلاَدُهُمْ إِنَّمَا يُرِيدُ الله ان يُعَذِّبَهُم بِهَا فِي الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنفُسُهُمْ وَهُمْ كَافِرُونَ .** [1]

ترجمه : او نه دی په تعجب کې اچوي تا مالونه د دغو (منافقانو که څه هم ډیر وي) او اولادونه د دوی (که څه هم قوي او زورور وي) بېشکه هم دا خبره ده چې اراده لری الله χ د دې چې په عذاب کړي دوی په دغو (مالونو او اولادونو) په دغه دنیا (لږ خسیس ژوندن) کې او ووځي (له بدنه ساوی) ارواح د دوی (په ډیر سختي او غم سره) حال دا چې دوی کافران وي (او په کفر و مري)

فناء

په قرآن کریم کې فناء یاده کړل شوېده مطلب یې مرګ دی الله χ فرمایي : **كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ * وَيَبْقَى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلالِ وَالاكْرَامِ .** [2]

ترجمه : ټول هغه څوک چې په دی (ځمکه) کې دي فاني کېدونکي دي او باقي به پاتې شي ذات د رب

---

[1] **سورة التوبة آية ٨٥**

[2] **سورة رحمن آية ٢٦ ، ٢٧**

ستا چې خاوند د جلال لوئي دی او (خاوند د) اکرام عزت ورکولو – عظمت – فضل – احسان دی .

## قضاء النحب (پوره کول د خپل نذر)

په قرآن کريم کې د قضاء النحب لفظ راغلی دی او مطلب يې مرگ دی اللهχ فرمايي :

**فَمِنْهُم مَّن قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ** .[1]

ترجمه : په هغه باندې (چې ثبات، استقامت فی القتال دی) پس ځينې له دوی هغه دي چې تر سره ئې کړ نذر خپل (چې مړ شو يا شهيد) او ځينې له دوی هغه دي چې انتظار کوي (دغه مرگ يا شهادت ته)

## وفاة

په قرآن کريم کې وفات تکی هم ذکر شوی او مطلب يې مرگ دی اللهχ فرمايي :

**الله يَتَوَفَّى الأَنْفُسَ حينَ مَوْتِها** .[2]

ترجمه : الله راکاږی (قبضوی) نفسونه په وخت د مرگ د دوی .

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

**قل يَتَوَفَّاكم مَلَكُ الموت** .[3]

---

[1] سورة الاحزاب آية ٢٣
[2] سورة الزمر آية ٤٢
[3] سورة السجدة آية ١١

ترجمه : وواياه (اى محمده ! دوى ته) قبض كوى ارواح ستاسې پرښته د مرګ

په بل ځاى کې الله χ فرمايي :

**وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَاللهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ .** [1]

ترجمه : دى او هغه کسان چې مړه شى له تاسې نه او پريږدي دوى ښځې انتظار دې کوي دا ښځې (د نکاح کولو څخه) په ځانو خپلو څلور مياشتې او لس (ورځې). نو کله چې ورسيږى دوى مودې د عدت خپل ته پس نشته هيڅ ګناه پر تاسې باندې په هغه کار کې چې کوي ئې دا ښځې په (حق د) نفسونو خپلو کې په ښه توګه (طور) (سم له شرعي اصولو) سره. او الله χ په هغو شيانو چې کوئ (يى) ښه خبردار دى (نو جزا به پرې درکړي).

په بل ځاى کې الله χ فرمايي :

**وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لازْوَاجِهِمْ مَتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ فَإِنْ خَرَجْنَ فَلا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِي مَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ مِنْ مَعْرُوفٍ وَاللهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ .** [2]

ترجمه : او هغه کسان چې مړه شى له تاسې نه او پريږدي دوى (خپلې) ښځې (لازم دي پر دوى باندې چې) وصيت د  و کړي دپاره د ښځو خپلو د خرڅ ورکولو تر يوه کاله پورې بې له ايستلو (له خپلو کورونو څخه) نو که پخپله ووتلې (دا ښځې له خپلو کورونو څخه) نو نشته هيڅ ګناه (او

---

[1] سورة البقرة آية ٢٣٤

[2] سورة البقرة آية ٢٤٠

نفقه او مسکن) په تاسې باندې په هغه شی کې چې کوي ئی دوی په خپلو ځانو کې له معروفه (له ښو کارونو چې پاکی او زینت دی او الله ډیر غالب (قوی په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا دی (چې هر کار له حکمت او مصلحت سره کوي)

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

**رَبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلايمَانِ أَنْ آمِنُوا بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الابْرَارِ.** [1]

ترجمه : ای ربه زمونږه ! بېشکه موږ واوریده (غږ) د یوه آواز کوونکي (چې قرآن یا محمد) دی بلل ئې (خلق) ایمان ته (داسې) چې ایمان راوړئ ! په رب خپل نو ایمان راووړ موږ (په رب خپل) ای ربه زمونږه ! نو مغفرت و کړه موږ ته گناهونه (لوی) زمونږ ! او لرې کړه له موږه ، گناهونه (واړه) زمونږ ! او وفات کړه موږ (په داسې حال کې چې داخل اوسو) سره له ډلې د نېکانو .

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

**رَبِّ قَدْ آتَيْتَنِي مِنْ الْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِي مِنْ تَأْوِيلِ الاحَادِيثِ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالأرض أَنْتَ وَلِيِّ فِي الدُّنْيَا وَالاخِرَةِ تَوَفَّنِي مُسْلِمًا وَأَلْحِقْنِي بِالصَّالِحِينَ.** [2]

---

[1] سورة آل عمران آیة ۱۹۳

[2] **سورة یوسف آیة ۱۰۱**

ترجمه : ای ربه زما په تحقیق راکړې دې ده ماته څه له باچاهي (او تصرف د مصر) او ښوولې دی دی ماته څه له ګرځولو د خبرو (لکه تعبیر د خوبونو بیان د کتابونو)، ای پیدا کوونکیه د اسمانونو او د ځمکې (بی له نمونې) هم ته ئې ولي (دوست واکدار کار جوړوونکی) زما په دنیا او په آخرت کې، وفات کړه ما په داسې حال کې چې مسلمان یم او ځای می کړه (په مرتبه او کرامت کې) له صالحانو سره .

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

وَالله خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفَّاكُمْ وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا إِنَّ الله عَلِيمٌ قَدِيرٌ .[1]

ترجمه : او الله پیدا کړی یئ تاسې (له عدمه) بیا به وژني تاسې (بیا به وفات کړي تاسې په اجل خپل سره) او ځینې له تاسې هغه څوک دي چې رد کولی شي هغه ډیر خوار ژوندون ته دپاره د دې چې ونه پوهیږي (دغه زوړ) پس له علمه چې ئې درلود (لرلو) په ځلمیتوب کې په هېڅ شي (لکه وړوکی)، بېشکه چې الله ښه عالم دی (پر هر شی) ښه قادر دی (په کولو د هر شي چې اراده ئې وفرمائي) .

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

وَمِنْكُمْ مَنْ يُتَوَفَّى وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَى أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلا يَعْلَمَ مِنْ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْئًا وَتَرَى الأرض هَامِدَةً فَإِذَا أَنزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَاءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَأَنْبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍ بَهِيجٍ .[2]

---

[1] سورة النحل آية ٧٠
[2] سورةحج آية ٥

ترجمه : او ځینی له تاسی څخه هغه دی چه وفات کولی شی (له رشد او قوت څخه وروسته یا پخوا) او ځینی له تاسی څخه هغه دی چه رد کاوه شی (یعنی ژوندی وی) تر ناکاره عمره پوری دپاره د دې چه نه پوهیږي وروسته له پوهې په هېڅ شی (د خپلو تولو قواؤ د بېکاره کیدلو له کبله) او وینې به ته ځمکه وچه شاړه نو هر کله چه نازلې کړو مونږ په دغې (وچې مړې شاړې ځمکې د آسمان له خوا) او به نو وخوځیږي او ډډه شي او زرغونه کړي له هر قسم نباتاتو څخه ښائسته تاند ، تنکي تېغ (د وښو په شنه کیدلو سره) .

هلاک

په قرآن کریم کې هلاک هم د مرګ په معنی دی الله χ فرمایي :

وَلَقَدْ جَاءكُمْ يُوسُفُ مِن قَبْلُ بِالْبَيِّنَاتِ فَمَا زِلْتُمْ فِي شَكٍّ مِّمَّا جَاءكُم بِهِ حَتَّى إِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَن يَبْعَثَ اللهُ مِن بَعْدِهِ رَسُولًا كَذَلِكَ يُضِلُّ اللهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابٌ (34) . [1]

ترجمه : او خامخا په تحقیق راغلی وو تاسی ته یوسف پخوا له (موسی څخه) په ښکاره وو دلائلو (د قدرت) پس همیشه به وئ تاسی په شک (ګمان) کښی له هغه (حکمه) چی راغلی ؤ دی تاسی ته په هغه سره ، تر هغه پوری کله چی وفات شو (یوسف) نو وویل تاسی چی له سره به راونه لیږی الله وروسته له دغه (یوسفه) هیڅ رسول . هم داسی (لکه دغه اضلال) ګمراه کوی الله (په کنده د سرکشی کښی) هر هغه لره چی مسرف له حده تیریدونکی وی شک راوړونکی وی (په دین د الله کښی) هغه (مسرفین او مرتابین) .

[1] سورة غافر

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

يَسْتَفْتُونَكَ قُلْ اللهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلالَةِ إِنْ امْرُؤٌ هَلَكَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ. [1]

ترجمة:يقين طلب د فتوى كوى دوى له تانه (اى محمده ! د كلالى) نو ووايه چې الله فتوى دركوى تاسې ته په (ميراث د) كلاكى كې، كه يو سړى مړ شي چې نه وي ده لره زوى (او نه پلار).

لكه مخكې چې تېر شول په قرآن كريم كې يقين هم د مرگ په معنى راغلى دى الله χ فرمايي :

وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّى يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ . [2]

ترجمه : نو تل تسبيح وايه سره له حمده د رب خپل او شه تل له سجده كوونكيو څخه او عبادت كوه د رب خپل تر هغه پورى چې راشى تاته يقين (يعنى مرگ).

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ (46) حَتَّى أَتَانَا الْيَقِينُ (47) . [3]

ترجمه : او وو به موږ (په دنيا كې) چې دروغ به مو ويل په ورځ د جزاء (قيامت) باندې تر هغه پورې چې راغلو موږ ته (هغه) يقيني خبره (مرگ).

خپله د موت (مرگ) لفظ په قرآن كريم كې په ۲۵ ځايونو كې ذكر شوى دى چې په ځينو كې يې مطلب همدا مرگ وي چې موږ يې په اړه خبرې كوو (د يو

[1] سورة النساء آية ١٧٦
[2] سورة الحجر آية ٩٩
[3] سورة المدثر

ژوندي شي له بدن نه د روح بېلېدل) او کله يې بيا نورې معنی ګانې وي الله χ فرمايي :

يَجْعَلُونَ أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِمْ مِنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ. [1]

ترجمه : ننه باسی دوی ګوتې خپلی په غوږونو خپلو کې له امله (وجې) د سخت آواز د تندرونو له ويرې د مرګه .

فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ . [2]

ترجمه : تمنا وکړئ د مرګ که چيرې يئ تاسې صادقان (په دعوی د خالصوالی د جنت کې خپلو ځانونو ته).

أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ . [3]

ترجمه : آيا وئ تاسې حاضران په هغه وخت کې چې راغی يعقوب ته (اسباب د) مرګ

كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِنْ تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ . [4]

ترجمه : فرض کړی شوی دی په تاسې باندې کله چې حاضر شي يو له تاسې ته (اسباب) د مرګ که پرې ايښی ئې وي څه مال، وصيت کول له پاره د مور او پلار او (نورو خپلوانو په ښه انصاف سره.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ . [1]

---

[1] سورة البقرة آية ١٩
[2] سورة البقرة آية ٩٤
[3] سورة البقرة آية ١٣٣
[4] سورة البقرة آية ١٨٠

ترجمه : آیا نه ده لیدلی تا (یعنی نه دی رسېدلی علم ستا ای عبرت اخیستونکیه ! قصې د) هغو کسانو ته چې وتلي وو له کورونو خپلو نه حال دا چې دوی په زرګونو و له ویرې د مرګ پس وفرمایل دوی ته اللهχ چې مړه شئ (پس مړه شول)

وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَلْقَوْهُ . [2]

ترجمه : او خامخا په تحقیق وئ تاسې چې آرزو به مو کوله د مرګ پخوا له هغه چې تاسې پیښیدئ پر دغه (مرګ) .

قُلْ فَادْرَءُوا عَنْ أَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ. [3]

ترجمه : ووایه (ای محمده ! دوی ته) نو لرې کړئ تاسې له نفسونو (ځانونو) خپلو څخه مرګ که یئ تاسې صادقان (رښتیني په دې خبره چې تاسې سره د مرګ دفعه شته).

كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . [4]

ترجمه : هر یو نفس څکونکی (د خوند) د مرګ دی، او بېشکه هم دا خبره ده چې پوره به درکړل شی تاسې ته اجرونه ستاسې په ورځ د قیامت کې.

فَإِنْ شَهِدُوا فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ حَتَّىٰ يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ. [5]

ترجمه :نو که شاهدان وغواړئ (ای قاضیانو له قاذفه) پر دوی باندې څلور تنه له تاسې

---

[1] البقرة آية ٢٤٣
[2] سورة آل عمران آ ية ١٤٣
[3] سورة آل عمران آية ١٦٨
[4] سورة آل عمران آية ١٨٥
[5] سورة النساء آية ١٥

(مسلمانانو نه)، نو که شاهدي وويله (شاهدانو پر زنا) نو بندي کړئ تاسې دا (ښځې) په کوټو کې تر هغه پورې چې وفاتې کاندي دوی موت .

حَتَّىٰ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآنَ. [1]

ترجمه : تر هغه پورې چې راحاضر شي يو د دوی ته (اسباب د) مرګ نو وائي چې بېشکه ما توبه ويسته اوس .

أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِكْكُمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِي بُرُوجٍ مُشَيَّدَةٍ. [2]

ترجمه : هر چېرته چې اوسئ تاسې وبه مومي تاسې لره مرګ اګر که اوسئ تاسې په برجونو (په کلاګانو، مانيو) ډېرو محکمو مضبوطو کړی شويو کې.

وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى الله وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى الله . [3]

ترجمه : او هر څوک چې ووځي له کوره خپله په داسې حال کې چې هجرت کوونکی وی طرف د اللهχ او رسول ته (جهاد، علم، او نورو مشروعو امورو ته) بيا و مومي (لاندی کړی) دی مرګ (بهر له کوره) نو په تحقيق واقع شو اجر (ثواب) د ده پر اللهχ باندې.

شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ. [4]

---

[1] سورة النساء آية ١٨
[2] سورة النساء آية ٧٨
[3] سورة النساء آية ١٠٠
[4] سورة المائدة آية ١٠٦

ترجمه : شهادت په منځ ستاسې کې کله چې حاضر شي يوه د ستاسې ته (علامې د) مرګ په وخت د وصيت کې (شهادت) د دوو تنو دی .

إِنْ أَنْتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَأَصَابَتْكُمْ مُصِيبَةُ الْمَوْتِ. [1]

ترجمه : كه تاسې سفر مو كاوه په ځمكه كې بيا ورسيږي تاسې ته مصيبت د مرګ .

حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ . [2]

ترجمه : تر هغه پورې كله چې راشي يو ستاسې ته مرګ قبضوي روح د ده ليږلې شوې (پرښتې زمونږ چې ستاسې د ارواحو د قبضولو دپاره ليږلې كيږي) او دوی هېڅ تقصير نه كوي (دامر په امتثال كې د اجل له پوره كېدلو څخه وروسته).

وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ . [3]

ترجمه : او كه وويني ته (ای محمده !) ظالمان يعني كافران په هغه وخت كې چې ظالمان په (باطني او روحاني) سختيو د مرګ كې وي.

كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنْظُرُونَ . [4]

ترجمه : ګواكې بيولی كيږی دوی طرف د مرګ ته په داسې حال كې چې دوی ويني (عينا مرګ په ستر ګو) .

---

[1] سورة المائدة آية ١٠٦
[2] سورة ا لانعام آية ٦١
[3] سورة الانعام آية ٩٣
[4] سورة الانفال آية ٦

وَلَئِنْ قُلْتَ إِنَّكُمْ مَبْعُوثُونَ مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ لَيَقُولَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ. [1]

ترجمه : او قسم دى چې خامخا كه ووائې ته (خپل قوم ته) چې بېشكه تاسې بيا ژونديدونكى يئ پس له مرګه نو هرومرو (خامخا) وبه وائي هغه كسان چې كافران شوي دي چې نه دى دغه (قرآن چې بيا ژوندون وائي) مګر سحر (جادو) ښكاره .

يَتَجَرَّعُهُ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُ وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ. [2]

ترجمه : چې غړپ غړپ به (په تكليف سره) څښي او نه به وي نژدې چې تېر كړي هغه (زوې په آسانى سره له ډيرتريخوالي او بدبوئي) او رابه شي ده ته (سختي د) مرګ له هر طرف (او له هر ځايه).

كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ وَنَبْلُوكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً. [3]

ترجمه : هر يو نفس څكونكى د مرګ دى (يعنى مري)، او از مايو موږ تاسې (په دنيا كې) په شر، بدي او په خير، نيكي سره په ازموينه.

حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُونِ. [4]

ترجمه : تر هغه پورى كله چې راشي يو د دوى ته (اسباب د) مرګ نو وبه وائي اى ربه ځما بيرته وګرځوه ته ما (دنيا ته).

كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ ثُمَّ إِلَيْنَا تُرْجَعُونَ. [1]

---

[1] سورة هود آية ٧
[2] سورة ابراهيم آية ١٧
[3] سورة الانبياء آية ٣٥
[4] سورة المؤمنون آية ٩٩

ترجمه : هر یو نفس (ژوندی) څکوونکی د مرګ دی (یعنی خامخا مري) بیا (خاص) موږ ته (په بعث بعد الموت سره) راوستل کیږی (د جزاء له پاره)

قُلْ يَتَوَفَّاكُمْ مَلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ. [2]

ترجمه : ووایه (ای محمده ! دوی ته) قبض کوي ارواح ستاسې پرښته د مرګ هغه چې مقرره شوې ده په تاسې (دپاره د قبض د ارواحو)

قُلْ لَنْ يَنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ إِنْ فَرَرْتُمْ مِنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ . [3]

ترجمه : ووایه (ای محمده دوی ته) چې له سره به نفعه نه رسوي تاسې ته تېښته که چېرې وتښتئ تاسې له مرګه .

تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ كَالَّذِي يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ. [4]

ترجمه : څرخیږي (ګاتې د) ستر ګو د دوی په شان د هغه انسان چې بیهوشي راوستلی شوې وي پر هغه له (وجه د سکراتود) مرګه

## د مرګ حقیقت

د مرګ په اړه څو حقیقتونو ته ستاسې فام را ګرځوم

## لمړی حقیقت

---

[1] سورة العنكبوت آية ٥٧
[2] سورة السجدة آية ١١
[3] سورة الاحزاب آية ١٦
[4] سورة الاحزاب آية ١٩

د مرګ تمنا کول او د ځان لپاره په دعاء کې مرګ غوښتل نا روا دي .

که په انسان باندې هرڅومره سخت حالات راځي په بدل کې يې انسان ته اللهχد صبر کولو امر کوي او اسلام موږ ته را ښيي چې د اللهχله لوري په موږ هر ډول حالت راځي موږ بايد چُپ پاتې شو او په خوشحالي سره د اللهχپه قضاء باندې رضا ښکاره کړو پداسې حالاتو کې ځينې خلک د ځان لپاره مرګ غواړي رسول اللهγ لدې نه په کلکه سره منع کړېده

د حضرت انس η نه روايت دی هغه فرمايي رسول اللهγ فرمايل : لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمْ الْمَوْتَ لِضُرٍّ نَزَلَ بِهِ، فَإِنْ كَانَ لَا بُدَّ مُتَمَنِّيًا فَلْيَقُلْ: اللهم أَحْيِنِي مَا كَانَتْ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي، وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتْ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي. [1]

ترجمه : پتاسې کې د هېڅوک هم د هغه تکليف له امله چې په ده نازل شوی وي د مرګ تمنا نه کوي او که خامخا داسې تمنا کول غواړي نو ود وايي : ای اللهχترڅو چې ماته ژوند خير وي نو ما ژوندی پرېږده او که چېرته زما لپاره وفات غوره وي نو ما وفات کړه .

په بل حديث کې د حضرت ابي هريره η نه روايت دی هغه فرمايي رسول اللهγ فرمايل : لَا يَتَمَنَّيَنَّ أَحَدُكُمْ الْمَوْتَ، إِمَّا مُحْسِنًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَزْدَادَ خَيْرًا، وَإِمَّا مُسِيئًا فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعْتِبَ. [2]

ترجمه : پتاسې کې د هېڅوک د مرګ تمنا نه کوي ځکه دا کس که نېک عمل وي نو چې د اوږده وخت

---

[1] رواه البخاري ومسلم
[2] رواه البخاري

لپاره پاتې شي نو نېک عملونه به يې زيات شي او كه بد عمله وي نو كېداى شي د اللهχد رضا لپاره كوښښ وكوي او ښنه وغواړي او خپل حال سم كړي .

په بل حديث كې حضرت انس η فرمايي رسول اللهγ فرمايل :

**لا يتمنين أحدكم الموت و لا يدع به من قبل أن يأتيه ، إنه إذا مات أحدكم انقطع عمله ، وإنه لا يزيد المؤمن عمره إلا خيراً .** [1]

ترجمه : په تاسې كې د څوك د مرګ تمنا نه كوي او مخكې لدې چې هغه ورته راشي ځان ته د په دعاء كې مرګ نه غواړي ، كله چې په تاسې كې څوك مړ شي د هغه عمل قطع شي او شان دا دى چې د مؤمن عمر چې څومره اوږدېږي هغه ته دومره خير ور كوي (ځكه دى به نېک اعمال كوي او دده د نېكو عملونو تله به درنېږي) .

يو بل حديث له حضرت جابر η نه روايت دى هغه فرمايي رسول اللهγ فرمايل :

**لا تمنَّوْا الموت فإن هول المطلع شديد ، و إن من السعادة أن يطول عمر العبد حتى يرزقه الله الإنابة.**

ترجمه : د مرګ تمنا مه كوئ مرګ ډېر سخت دى او د انسان لپاره د نېكبختي خبره ده چې عمر يې اوږد شي ترڅو اللهχ ورته خپل طرف ته د رجوع توفيق وركړي .

---

[1] صحيح البخاري و مسلم

پوښتنه : چې د مرګ تمنا او ځان ته د مرګ دعاء کول نا روا دي بیا حضرت یوسف ν په خپله دعاء کې ولي وویل:توفني مسلماً و الحقني بالصالحين (ما مسلمان وفات کړه او ما په صالحینو پورې پیوست کړه) ؟

ځواب : ددې پوښتنې ځواب په څو وجو سره دی :

۱. حضرت یوسف ν دا دعاء پداسې حالت کې وکوله چې هغه ته مرګ راغلی وو او د ځانکدن نښې یې ښکاره وې پداسې وخت کې هم د حضرت عائشې l په حدیث کې مخکې تېر شول چې رسول اللهγ فرمایل :**اللهم في الرفيق الأعلى، اللهم في الرفيق الأعلى، اللهم في الرفيق الأعلى.** [1]

ترجمه : ای اللهχپه رفیق اعلی کې ... یعني دا چې زه د دنیا ژوند نه غواړم رفیق اعلی ته مې ور نقل کړه .

۲. یا دا چې د حضرت یوسف ν په دین کې به چې چاته خپل مرګ ښه ښکاره شو نو د مرګ د سوال کولو نه منع نه وه شوې او زمونږ لپاره زمونږ خپل دین دی زمونږ په دین کې منع ترېنه شویده او موږ په خپل دین عمل کوو .

۳. یا یې معنی دا نه ده چې یوسف ν د ځان لپاره مرګ غوښت بلکه هغه ویل چې کله زما مرګ وي نو په اسلام باندې مې ټینګ وفات کړه او د ځان لپاره یې د مرګ نه بلکه د حسن خاتمې لپاره دعاء کړېده دا داسې ده لکه څوک چې دعاء

---

[1] رواه البخاري ومسلم

کوي : **اللهم أحينا مسلمين، وتوفنا مسلمين، وألحقنا بالصالحين .** [1]

ترجمه : ای اللّهχ موږ ته په اسلامي طریقه ژوند راکړه ، پداسې حالت کې مو وفات کړه چې موږ په اسلام ټنیګ ووء، موږ په صالحینو پورې پیوست کړه .

پوښتنه : په حضرت مریم o باندې چې کله د حضرت عیسی v د تولد درد راغلو دې مبارکې وویل : **يَا لَيْتَنِي مِتُّ قَبْلَ هَذَا** (کاش زه ددېنه مخکې مړه شوې وای) هغې مبارکې ولې داسې خبره کوله؟

ځواب : حضرت مریم o دا خبره د درد له امله نه ده کړې بلکه هغې مبارکې د فتنې له امله وکوله چې پداسې حالت کې چې ټولو خلکو حضرت مریم o ته د یوې بزرګې په نظر کتل او ښه عقیده یې ورته درلوده اوس به خلک ددې په اړه فکر کوي چې دا بد عمله ده خاونده یې نېښته او ماشوم یې پیدا شوی دی ده نو پدې حالت کې دې وویل : **يَا لَيْتَنِي مِتُّ قَبْلَ هَذَا وَكُنْتُ نَسْيًا مَنْسِيًّا** (کاش زه ددېنه مخکې مړه وای او اوس داسې وی چې له خلکو بالکل هېره وای) نو دا دفتنې وخت دی او په احادیثو کې هم دېته ورته دعاګانې راغلي دي معنی دا چې د فتنې له وېرې د مرګ دعا کول څه فروا نه کوي رسول اللّهγ په یوه دعاء کې فرمایل : **اللهم إني أسألك فعل الخيرات، وترك المنكرات، وحب المساكين، وأن تغفر لي**

---

[1] ابن کثیر

وترحمني، وإذا أردت فتنة في قوم فتوفني غير مفتون، أسألك حبك، وحب من يحبك، وحب عمل يقربني إلى حبك.[1]

ترجمه : اى الله χ زه لتا نه سوال كوم د توفيق د نيكيو د كولو، د بدو كارونو د پرېښودلو ، د مسكينانو د محبت ، او دا چې ته ماته بښنه وكوې او په ما رحم وكوې، او كله د چې په قوم كې فتنه پيدا كول غوښتل نو ما پداسې حالت كې وفات كړه چې په فتنه كې نه وم اچول شوى ، زه لتانه ستا د محبت سوال كوم ، او د هغه چا د محبت سوال كوم چې ستا سره محبت كوي ، او د داسې عمل محبت لتانه غواړم چې ما ستا محبت ته ور نېږدې كوي .

همدارنګه د محمود بن لبيد η يو حديث دى چې رسول الله γ فرمايل : اثنتان يكرههما ابن آدم: الموت، والموت خير من الفتنة. ويكره قلة المال، وقلة المال أقل للحساب.[2]

ترجمه : دوه شيان دي چې د بني ادم بد ايسي مرګ او مرګ له فتنې نه غوره دى او د مال كمښت يې بد ايسي او د مال كمښت د حساب د كمېدلو لامل كيږي .

په يو بل حديث كې هم رسول الله γ فرمايي چې په آخر وخت كې به داسې وخت راشي چې يو څوک به تمنا كوي چې كاش زه مړ واى له مالک نه روايت دى هغه له ابي زناد هغه له اعرج او هغه له ابي هريره η نه روايت كوي هغه فرمايي رسول

---

[1] رواه الترمذي
[2] رواه أحمد

الله γ فرمایل : **لا تقوم الساعة حتى يُمر بقبر الرجل فيقول: يا ليتني مكانه** .

ترجمه : قیامت تر هغه وخته پورې نه راځي تر څو داسې حالت رانشي چې یو څوک به د چا په قبر باندې تیریږي او وایي به کاش ددې قبر واله په ځای زه تردې خاورو لاندې وی .

د حضرت عمر η په اړه هم نقل شوي دي چې هغه دعاء کوله او فرمایل یې : **اللهم قد ضعفت قوتي و كبرت سني و انتشرت رعيتي فاقبضني إليك غير مضيع و لا مقصر** .

ترجمه : ای الله χ زه کمزوری شوم ، عمر مې زیات شو ، رعیت مې بې اتفاقه شو ، ما ته پداسې حالت کې دروا خله چې زه ستا د احکامو لپاره ضائع کونکی نه وم او نه په نېکو عملونو او ستا په احکامو کې کوتاهي کونکی وم .

حضرت عمر η چې دا دعاء وکوله تردي وروسته یوه میاشت نور پاتې نشو الله χ ورته شهادت ورکړو .

## دوهم حقیقت

مرګ یو پیدا کړل شوی مخلوق دی لکه ځینې خلک چې فکر کوي دا عدم نه دی بلکه له یو ژوند نه انسان بل ژوند ته نقل کونکی شی، او له بدن څخه د روح د تعلق ختمېدل دي ، ، له یو دار نه بل ته منتقل کېدل دي ، او الله χ پیدا کړی دی لکه الله χ چې فرمایي :

الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا وَهُوَ الْعَزِيزُ الْغَفُورُ . [1]

ترجمه : هغه (الله χ)چې پیدا کړی ئې دی مرګ او ژوندون لپاره د دي چې وازموئي تاسې چې کوم یو له تاسې ډیر ښه دی د عمل له مخې (چې درکړي تاسو ته جزاء د اعمالو) او هم دغه (الله χ) ښه غالب قوي دی ډیر مغفرت کوونکی دی.

معنی دا چې اللهχ انسانان پدې دنیا کې پیدا کړي دي او دوی ته یې ویلي دي چې دوی به لدې دار نه بل دار ته نقل کیږي او هغه نقل کېدلو ته مرګ ویل کیږي بیا اللهχ پدې دنیا کې انسانان په څه کارونو باندې مکلف کړي دي او له څه کارونو ته یې منع کړي دي او د همدې اوامرو منل ددې سبب کیږي چې انسان جنت ته او نه منل ددې سبب کیږي چې انسان دوزخ ته لاړ شي .

مرګ یو لوی مصیبت دی چې په انسان نازلیږي اللهχ په قرآن کریم کې ورته مصیبت ویلي دی اللهχ فرمایي : **فأصابتكم مصيبة الموت** او زمونږ علماء فرمایي : مرګ دومره لوی مصیبت نه دی لکه د هغه نه غافل کېدل ، د هغه په اړه فکر نه کول، د هغه نه بېغمه کېدل ، د هغه لپاره عمل نه کول دا لوی مصیبتونه دي او چې وروسته ترېنه بل هېڅ هم نه وي (دوزخ او عذابونه ، جنت او نعمتونه) یوازې په مرګ کې د هغه چا لپاره لوی عبرت پروت دی چې څوک عبرت اخیستونکي وي .

## دریم حقیقت

[1] سورة الملک آیة ۲

د مرګ په يادولو باندې حکم شوى دى

زمونږ اسلام موږ ته امر کوي چې موږ بيا بيا ځان ته مرګ را ياد کړو ترڅو مو هر وخت په ياد وي چې مرګ ته بايد ځان تيار وساتو او انسان بايد مرګ ته داسې تيار وي چې همدا اوس ورته راځي نو دى په زړه کې داسې ونه وايي چې يو څو ورځې وروسته واى چې ما تياري کړى واى ددې امله خو به رسول اللهγ هر وخت ويل :

أكثروا من ذكر هاذم اللذات .[1]

ترجمه : دا د مزو قطع کونکى دا د عيش ختمونکى (مرګ) ډېر يادوئ .

علماء د رسول اللهγ ددې حديث په اړه فرمايي: د رسول اللهγ دا حديث ډېره مختصره جمله ده لکن پوره وعظ پکې دى ځکه چې څوک په رښتيا معنى سره مرګ ياد کړي هغه د موجوده دنيا له نعمتونو څخه په پوره اندازه سره خوند نشي اخيستلى ، او په راتلونکي وخت کې يې له دنيا نه زړه پورته کيږي ، او هغه چې ده يې اوږده اميدونه ساتلي وي څو کاله وروسته يې د يو کار کولو پروګرام جوړ کړى وي هغه په ذهن کې ورته بې ځايه کار ښکاره کيږي لکن هغه زړونه چې ويده شوي وي هغه نفسونه چې غافل شوي وي هغه په لنډ وعظ نه پوهيږي هغه اوږدې خبرې غواړي او ډېر وخت کار ور باندې کول غواړي او کنه نو چې د کوم انسان سره ويښ زړه وي هغه ته چې دا حديث او د اللهχ يو آيت چې اللهχ فرمايي : **كل نفس ذائقة الموت** (هر نفس د مرګ څکونکى دى) دواړه يو ځاى لوى عبرت او پند دى او د هر نصيحت نه ورته پوره دى .

---

[1] **صحيح الترمذي**

د مرګ د زياتو يادولو لويه فايده داده چې کله انسان مرګ يادوي نو دا په زړه کې له فاني دنيا نه مړېدل پيدا کوي او په هره لحظه کې انسان د آخرت لوري ته متوجه کوي کوم چې همېشه پاتې کېدونکی ژوند دی بيا انسان که د سختي او که اساني په حالت کې وي نه ورته تر حد زيات خوشحاليږي او نه ورته تر حد زيات خفه کيږي ځکه په هر صورت کې يې يقين وي چې دا وخت د همېش لپاره نه دی او يوځه وخت وروسته بدليدونکی دی نو چې کله د سهولت حالت وي نو ضروري خبره ده چې مرګ به هغه ټول عيشونه او سهولتونه له انسان څخه واخلي چې دی په دنيا کې ترېنه خوند اخلي او کله چې د تکليف په حالت کې وي نو انسان مرګ يادوي نو پوهيږي چې دا حالت د اوږده وخت لپاره نه دی او پدې پسې مرګ را روان دی چې هغه په دنيا کې له هرې سختۍ نه ډېر سخت دی ځکه خو رسول اللهγ په يو حديث کې فرمايي چې مرګ تر ټولو هغه څه نه سخت دی چې انسان تر اوسه پورې په دنيا کې ليدلي دي او له مرګ نه وروسته چې څومره حالات راځي تر هغه ټولو نه مرګ اسانه دی .

حضرت عبد الله ابن مسعود η فرمايي : رسول اللهγ فرمايل : له اللهχ نه په رښتينې حياء سره حياء وکوئ صحابه ووM ورته وويل : ای د اللهχ رسوله موږ خو حياء کوو رسول اللهγ وويل : دا نه بلکه څوک چې رښتيا حياء وکوي هغه سر او هغه څه چې په سر کې دي له ناروا نه وساتي ګېډه او هغه څه چې په ګېډه کې دي هغه وساتي ، مرګ او د مرګ مصيبت هر وخت ياد کړي ، څوک چې آخرت غواړي هغه د دنيا زينت پريږدي ، چا چې دا کارونه وکول دوی رښتيا حياء وکوله .[1]

[1] رواه الترمذي

د حضرت براء η نه روایت دی هغه فرمایي رسول اللهγ زمونږ سره په یوه جنازه کې شریک وو د یوه قبر په خوا کې کېناستو سخت سخت یې وژړل بیا یې موږ ته وویل : ورونو ددې وخت لپاره تیاری وکوئ .[1]

حضرت عبد الله ابن عمر η فرمایي : رسول اللهγ زه تر اوږه ونیولم او راته یې وویل : په دنیا کې داسې ژوند کوه لکه ته چې غریب وې او یا مسافر وې او حضرت عبد الله ابن عمر η به فرمایل :کله چې دربانديې بیګاه شو تر سبا پورې انتظار مه کوه (په زړه کې داسې وېره در پیدا کړه چې کېدای شي په تا بانديې صبا رانشي او کوم نېک اعمال چې له مرګ نه وړاندې کول غواړې نو همدا اوس یې وکوه) او کله چې در بانديې صبا شو نو د بېګاه انتظار مه کوه کله چې جوړ وې د هغه ورځو لپاره کار وکوه چې بېمار وې ، کله چې ژوندی وې د هغه ورځو لپاره د کار وکوه چې کله به ته مړ کېږې .[2]

حضرت عائشې l ته یوه ښځه راغله د خپل زړه د سخت والي نه یې ورته شکایت وکولو هغې مبارکې ورته وویل : مرګ ډېر یادوه زړه به د نرم شي ام المؤمنین حضرت حفصة l فرمایي یو څو ورځې وروسته هغه ښځه ام المؤمنین حضرت عائشې l ته راغله او د هغې د ښې او کامیابې مشورې شکریه یې ورته وویله .

حضرت عبد الله ابن عمر η فرمایي : **كنت جالساً مع رسول الله صلى الله عليه و سلم فجاء رجل من الأنصار فسلم**

---

[1] **رواه ابن ماجة**
[2] **صحيح البخاري**

**على النبي صلى الله عليه وسلم ، فقال يا رسول الله : أي المؤمنين أفضل ؟ قال : أحسنهم خلقاً , قال : فأي المسلمين أكيس ؟ قال : أكثرهم للموت ذكراً و أحسنهم لما بعدهم استعداداً أولئك الأكياس .** [1]

ترجمه **:** زه د رسول اللهγ سره ناست وم چې د انصارو نه يو كس ورته راغلو په رسول اللهγ يې سلام واچولو بيا يې ورته وويل **:** اې رسول اللهγكوم مؤمن غوره دى؟ رسول اللهγ ورته وويل **:** هغه چې ا خلاق يې ښه وي ، بيا يې ورته وويل **:** كوم مسلمان هوښيار دى رسول اللهγ ورته وويل **:** هغه چې مرگ ډېر يادوي او د هغه نه ورسته چې كوم حالات راځي چې د هغه لپاره ښه تيارى كوي هغه كسان هوښياران دي .

په يو بل حديث كې رسو ل اللهγ فرمايي **: كفى بالموت واعظاً و كفى بالموت مفرقاً . و قيل له يا رسول الله : هل يحشر مع الشهداء أحد ؟ قال : نعم ، من يذكر الموت في اليوم و الليلة عشرين مرة .**

ترجمه **:** مرگ نصيحت كونكى بس دى مرگ فرق كونكى بس دى **..** پوښتنه تري وشوه يا رسول اللهγ داسې څوک شته چې له شهيدانو سره يې حشر كيږي؟ (شهيد نه وي بلكه د شهيدانو په جم كې را پورته كيږي؟) رسول اللهγ ورته وويل **:** هــــو ! هغه كسان چې په شپه او ورځ كې مرگ شل ځله يادوي .

---

[1] **رواه ابن ماجه**

حضرت يزيد الرقاشي ρ به خپل ځان ته (خپلو شاګردانو ته د نصيحت په موخه او خپل ځان ته د مرګ د يادولو په غرض) ويل : هلاکت دی تا لره يزيده ! ته چې مړ شې څوک داسې شته چې ستا رب لتا څخه راضي کړي؟ بيا به يې خلکو ته ويل : تاسې په دې پاتې ژوند کې د خپل ځان لپاره نه ژاړئ؟ عجيبه ده چې د چا يقين وي چې قبر به يې بستره وي دی به پکې څملي ، مرګ په ده پسې ګرځي دده لټون کوي ، او په قبر کي چينجې دده ملګري وي ، بيا هم هغه ته مخ نه اړوي او د خپل ځان د راتلونکې په اړه الله χ ته نه ژاړي؟ پدې خبرو کې به په ژړا شو کله به ورباندې څه چل وشو او را وبه غورځېدو .

امام تيمي ρ لوی عالم او بزرګ شخصيت وو هغه به ويل : دوه شيان دي چې ما د دنيا له نعمتونو څخه لذت اخستلو ته نه پريږدي مرګ او د الله χ په وړاندې دريدل چې کله هم ماته را ياد شي نو بيا زه د دنيا له يو نعمت نه هم خوند نشم اخستلی .

ابو نعيم د حضرت سفيان ثوري ρ په اړه فرمايي کله به چې د هغه په وړاندې د مرګ ذکر وشو او پدې اړه به خبرې وشوې هغه مبارک به څو ورځې بې سوره وو او چې پدې ورځو کې به د کومې خبرې په اړه ورڅخه پوښتنه کېده ده به ويل : نه پوهيږم ... نه مې د ياد ، څه خبر يم ...

د رسول الله γ په مجلس کې څه کسان ناست وو د يو کس په اړه يې ښې خبرې وکولې او د هغه ستاينه يې وکوله رسول الله γ وفرمايل : د مرګ په يادولو کې څنګه وو؟ (مرګ يې يادولو؟) چا هم ځواب ورنه کړو او چا ته هم نه وو ياد چې هغه د مرګ

ذکر کړی وي بیا رسول اللهγ وفرمایل : د هغه په اړه چې تاسې کومه ستاینه کوئ هغه داسې نه وو (یعني چې مرګ یې نه یادولو هېڅ د ستاینې وړ نه وو) .

امیر المؤمنین حضرت عمر بن عبد العزیزξ یوه ورځ د خپلو ملګرو په مینځ کې ناست وو د یو څه خاموشي وروسته په ژړا شو چا ورڅخه د ژړا وجه وغوښته ده ورته وویل : ما په دنیا او د دنیا په مزو کې فکر وکاوه چې دا خلک یې څنګه په غفلت کې اچولي دي او له ټولو نه یې مرګ هېر کړی دی او یو عبرت راته پکې حاصل شو دا د دنیا شهوات ټول فاني کېدونکي دي انسان باید عبرت ترې واخلي او په دې هر شي کې دلته یو پند او نصیحت پروت دی .

حضرت ابو الدرداء I به ویل : په نصیحت کې مرګ بس دی او دا زمانه بس ده چې انسان ته ور وښیي چې څه شی ښه او څه شی بد دي انسان یوه ورځ دلته او بله ورځ په قبر کې وي همدومره نصیحت کافي دي .[1]

حضرت ابو بکر صدیق I ډېر زیات له اللهδ نه ډاریدونکی انسان وو کله کله به یې ویل کاش چې زه انسان نه وای او له مرګه وروسته راسره حساب نه کېدای کاش زه یو بوټی وای چې لوی شوی وای او بیا خوړل شوی وای او کله به یې ویل کاش زه د یو مؤمن سړي په بدن باندې خالي یوویښته وای .[2]

[1] موسوعة ابن أبي الدنيا
[2] **موسوعة ابن ابي الدنيا**

حضرت ابو عبیده بن الجراح I ډېر تقوی دار او له الله δ نه زیات ډارېدونکی انسان وو هغه به کله کله ویل : کاش زه انسان نه وای چې د مرګ نه وروسته به را سره حساب کیږي کاش چې زه ګډ وای او خپل اهل حلال کړی وی زما غوښه یې خوړلې وای او زما ښوروا یې څښلې وای . 1

امام دقاق ρ فرمایي : هغه کس چې مرګ ډېر یادوي الله χ ورته په درېو شیانو باندې عزت ورکوي :

۱. چې کله ګناه وکوي زر توبه وباسي.

۲. په زړه کې یې قناعت وي.

۳. د عبادت نه خوند اخلي.

او هغه کس چې مرګ نه یادوي هغه ته په دریو شیانو باندې عذاب ورکول کیږي:

۱. چې ګناه وکوي د توبې توفیق نه ورکول کیږي.

۲. کوم شی چې بس کیږي په هغه باندې قناعت نه کوي بلکه لا زیات غواړي ۳. په عبادت کې سست وي او له عبادت نه خوند نشي اخیستلی .

## هغه شیان چې انسان ته مرګ ور په زړه کوي

## قبرونو ته تلل

---

1 موسوعة ابن ابي الدنيا

همدارنګه رسول اللهγمور ته په هغه څه باندې هم امر کوي چې هغه د مرګ د په زړه کېدلو سبب کيږي حضرت ابو هريره η فرمايي رسول اللهγ د خپلې مور قبر ته ورغلو ويې ژړل او په خوا کې حاضرين يې وژړول بيا يې وفرمايل :

**استأذنت ربي أن أستغفر لها فلم يُووذنُ لي ، واستأذنته في أن أزور قبرها فأذن لي ، فزوروا القبور فإنها تذكر الموت .** [1]

ترجمه : ما له اللهχ نه اجازه وغوښته چې د خپلې مور لپاره بښنه وغواړم اللهχ راته اجازه ونه کوله بيا مې ترې اجازه وغوښته چې د قبر زيارت ته يې ورشم بيا يې راته اجازه وکوله د قبرونو زيارت کوئ دا تاسې ته مرګ در په زړه کوي .

حضرت عبد الله ابن مسعود η فرمايي رسول ا للهγ فرمايل : **كنت نهيتكم عن زيارة القبور . فزوروها . فإنها تزهد في الدنيا و تذكر الآخرة .** [2]

ترجمه : ما تاسې د قبرونو د زيارت څخه منع کړي وئ خو اوس يې زيارت کوئ ځکه دا له دنيا نه زړه تړولوي او انسان ته آخرت ور په زړه کوي .

د حضرت علي η د قبرونو د زيارت په اړه يوه واقعه نقل شوېده : چې هغه د قبرونو زيارت ته ورغلو هلته يې وويل : **ياأهل القبور أخبرونا عنكم ، أو نخبركم . أما خبر من قبلنا : فالمال قد اقتسم ، و النساء قد**

---

[1] رواه مسلم
[2] رواه ابن ماجة

**تزوجن ، والمسكن قد سكنها قوم غيركم ، ثم قال : أما و الله لو استطاعو لقالوا : لم نر زاداً خيراً من التقوى.**

ترجمه : ای د قبرونو خلکو موږ ته خبر راکړي چې ستاسې ځه حال دی او یا به موږ تاسې ته خبر درکړو نو زمونږ د خوا نه خو خبر داد چې (ستاسې) مال تقسیم شوی دی ، د ښځو سره نورو خلکو ودونه کړي دي ، او په کورونو کې اوس نور خلک اوسیږي ... بیا یې وویل : و الله که دوی خبرې کولی شوای نو اوس به یې ویلي وو چې د تقوی نه ښه توښه نشته .

علماء کرام فرمايي د مرګ په یادولو کې څو فایدې دي : **تذكر الموت يردع عن المعاصي ، ويلين القلب القاسي ، ويذهب الفرح بالدنيا ، ويُهون المصائب فيها.**

ترجمه : د مرګ یادول لتا څخه ګناهونه لرې کوي ، سخت زړه نرموي ، په دنیا باندې خوشحالي لتا څخه بیايي ، په دنیا کې مصیبتونه سپکوي .

علماء کرام فرمايي : کله چې زړونه سخت شي نو د هغوی لپاره د قبرونو ډېر زیارت کول بهترین او غوره علاج دی او کله چې زړونه سخت شي باید خلک یې په یو د دریو شیانو باندې علاج وکوي :

١. د سخت زړه مالک باید د وعظ او نصیحت مجلسونو ته حاضر شي او د پند خبرې واورې لدې سره زړه نرمیږي او دا د زړه د ډېرو بیماریو علاج دی .

٢. چې په هرشي باندې انسان ته مرګ ور یادیږي باید هغه وکوي که د تېرو خلکو په اړه فکر کول وي ، که هدیرې ته تلل وي او که هر څه وي .

۳. هغه چا ته ورتلل چې ځانکدن یې وي ځکه هغه بیمار ته کتل چې ځانکدن یې وي او د هغه سره کېناستل د انسان زړه نرموي او تر ډېره وخته پورې بیا انسان ته یاد وي او لدې سره انسان ته مرګ ور په یادیږي او چې پدې کې انسان لږ فکر وکوي چې یوه ورځ به زما هم دا حال وي بیا انسان مرګ ته د تیاري کولو په فکر کې شي

حضرت حسن بصري ρ د یو بیمار لیدلو ته ورغلو چې ځانکدن یې وو د هغه حالت یې چې ولیدو بېرته کور ته ستون شو رنګ یې بدل وو حالت یې غیر وو کور واله ترې پوښتنه وکوله چې ته کله وتلې داسې خو نه وې څه چل دربانديې وشو؟ ده وویل : تاسې خپل خوراک او څښاک وکوئ ما په داسې حالت کې یو کس لیدلی دی چې څو پورې زه ژوندی وم ددې حالت لپاره به تیاری کوم .

که مونږ د مرګ په اړه خبرې هرڅومره ډېرې واورو نو په زړونو مو دومره تاثیر نه کوي خو چې په خپلو سترګو یې ووینو نو بیا زړه ورسره نرم شي

حضرت عبدالله بن عباس η فرمایي رسول الله γ فرمایل : **ليس الخبر كالمعاينة** (آوریدل لکه لیدل داسې نه دي)

خو داده چې دا اسانه نه ده چې انسان هغه چا ته ورشي چې د هغه ځانکدن وي ځکه انسان ډېر کم پداسې حادثو خبریږي او بیا په هغه وخت کې انسان ته ډېر کم دا فرصت په لاس ورځي چې د پردي کس په خوا کې ورته د کېناستلو موقع په لاس ورشي خو که مونږ وغواړو نو د قبرونو زیارت ته خو هر وخت په اسانه ورتلی شو او هر وخت چې وغواړو هدېره په خپل ځای پرته ده مونږ ورتلی شو .

## څلورم حقیقت

مرګ يو معين او مقرر شوى شى دى او په خپل وخت باندې راځي او کوم ژوندى شى چې پيدا شوى دى دده لپاره د مرګ نېټه تعين کړل شوېده چې نه له هغه معلومې لحظې نه مخکې راځي او نه وروسته کيږي او هرشى چې مړ کيږي او هر انسان چې مړ کيږي د اللهχ په اذن او اجازه سره مړ کيږي اللهχ فرمايي :

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلاَّ بِإِذْنِ الله كِتَابًا مُووجَّلاً .[1]

ترجمه : او نشته هيڅ نفس لره دا چې مړ شى مګر په اذن (حکم) د الله سره چې ليکلى شوى دى (دا مرګ) په يوه مقرروخت کې (چې نه وړاندى او نه وروسته کيږى) .

معنى دا چې زمونږ په ګرانو خلکو او خپلوانو باندې چې مرګ راځي بايد موږ وربانډې فرياد او وير ونه کوو ځکه فرياد به هغه څوک کوي چې دى پخپله نه مړ کيږي حال دا چې د هر انسان لپاره له مخکې نه مرګ تعين شوى دى نو ځکه چې د چا وخت پوره شي هغه بغير د کوم لوى سبب نه مړ شي او وړوکې خبره يې د مرګ سبب شي او هغه کس چې وخت يې نه وي پوره ښه په لوى خطر کې به واقع شي لکن بيا به يې هم اللهχ حفاظت وکوي او ژوندى به ورڅخه خلاص شي او همدا دوه حالتونه دي چې موږ يې هر وخت وينو او آورو نو څومره چې انسان کوښښ وکوي له مرګ نه يې خلاصى او په خپل معلوم وخت کې يې له مرګ نه نجات نشته اللهχ فرمايي : قُلْ لَوْ كُنْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ إِلَى مَضَاجِعِهِمْ .[2]

[1] سورة آل عمران آية ١٤٥
[2] سورة آل عمران آية ١٤٥

ترجمه : که وی تاسې په کورونو خپلو کې(نو) خامخا به راوتلي وو هغه کسان چې مقرر شوی وو په دوی باندې وژل طرف د ځایو د پریوتلو خپلو ته ،

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

وَلَنْ يُووخِّرَ الله نَفْسًا إِذَا جَاءَ أَجَلُهَا وَالله خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ .[1]

ترجمه : (په مونډلو د مافات سره نو فرمائي الله) او له سره به نه وروسته کوی الله هېڅ نفس لره (له مرګه کله چې راشي نېټه ئې او الله ښه خبردار دی په هغه څه (ښه او بد)چې کوی ئې تاسې (نو جزا به پری درکړی).

چا ته چې اللهχ په کوم وخت کې مرګ نه وي لیکلی خلک هغه ته مرګ نشي ورکولی پدې اړه ماته د حضرت عبد الله بن حذافه السهمي η واقعه را یادیږي لتاسې سره یې شریکوم .

کله چې په شام کې اسلامي دولت قائم شو امیر المؤمنین حضرت عمر η د هغه واک حضرت معاویة بن ابي سفیان η ته ورکړو او یو لیک یې ور ولېږلو چې په هغه کې یې ده ته امر کړی وو چې د رومیانو سره جنګ وکوي او د مجاهدینو په لښکر باندې د حضرت عبد الله بن حذافه السهمي η امیر کړي حضرت معاویة η همداسې وکول لښکر د رومیانو جنګ ته ور ووتلو جنګ وشو او مجاهدینو ښه قرباني ورکړه او ښه جنګ یې وکولو لکن د تاسف خبره دا وه چې حضرت عبد الله η د څه ملګرو سره د رومیانو په کمین ورغلل او ټول یې ژوندي ونیول ...

---

[1] سورة المنافقون آية ١١

قیصر ته ورانديې کړل شول قیصر ته داسې کسان په لاس ورغلل چې ډېر وخت یې د دوی قصې آورېدلې او د رسول اللهγ خاص کسان وو او دوی ته او د دوی لښکر ته یې شرمونکې ماتې ورکړې وه او دا ټوله قصه د قیصر په زړه کې ورته پرته وه خو مخکې ددې چې دوی مړه کړي قیصر غوښتل چې وګوري چې دا څنګه خلک دي له ده سره یې خبرې وکولې په خبرو کې یې ډېر زیات خوښ شو او دده تکړه توب ته حیران شو هغه ورته وویل : نصراني شه بېرته به مو پرېږدم لکن حضرت عبد الله η ورته وویل : نـــــــــــه

بیا یې ورته وویل : نصراني شه نیمه بادشاهي به درکړم .

حضرت عبد الله η ورته وویل : نـــــــــــه

بیا یې ورته وویل : نصراني شه نیمه بادشاهي به درکړم او په حکم کې به دې له ځان سره شریک کړم هره فیصله چې زه کوم ستا به پکې دخل وي ستا رایه به پکې معتبره وي .

حضرت عبد الله η ورته وویل : چې ته خپله بادشاهي راکړې ، او د خپلو نیکونو بادشاهي راکړې او د ټولې د نیا د عربو او عجمو بادشاهي راکړې چې زه د سترګې د یو رپ په اندازه له خپل دین څخه واوړم نو هم زه به وانه وړم قیصر ورته په غصه شو ورته یې وویل : بیا خو به زه تا وژنم .

حضرت عبد الله η ورته وویل : ومې وژنه ...

نو یې راوستلو په یوه لرګي پورې یې وځړولو او غیشي ویشتونکي خلک یې ورته را ټول کړل هغوی

ته يې وويل : په ده باندې وارونه کوئ لکن شاوخوا ورته ولئ او دی مه ولئ .

پدې وخت کې يې ورته وويل : نصراني شه .....

حضرت عبد الله η ورته وويل : نـــــــــه او پداسې لحظو کې يې د خپل مرګ انتظار ويسته .

بيا يې حضرت عبد الله η يو کس ته حواله کړو ورته يې وويل : دا ښه سخت وږی کړه او بيا د خنزير غوښه ورکړه چې ويې خوري .. هغه کس همداسې وکول او د ډيرې لوږې نه وروسته يې ورته د خنزير غوښه مخې ته کېښوده لکن حضرت عبد الله η يې له خوړلو نه مکمل انکار وکولو او ويې ويل : ددې خوراک زمونږ په دين کې ناروا دی او په مسلسله توګه يې د خنزير له غوښې انکار کولو تردې چې نېږدې وه چې دی له لوږې نه وفات شي ...

هغه کس قيصر ته دا ټوله واقعه تېره کړه چې هغه مرګ ته نېږدې شوی دی لکن د خنزير غوښه نه خوري قيصر بادشاه ورته وويل : بس څه چې خوړل غواړي ورېې کړه چې ويې خوري او اوس يې تږی کړه او چې ښه زيات تږی شي نو ورته شراب ورکړه چې ويې څښي حضرت عبد الله η په همدې ډول د شرابو له څښلو نه په سختې سره انکار کولو تردې چې هلاکت ته نېږدې شو هغه کس راغل قيصر ته يې وويل : که هغه کس (حضرت عبد الله η) ستا په کار وي نو اجازه وکوه چې هغه ته داسې څه ورکړو چې هغه يې څښل غواړي کنه نو هغه به مړ شي قيصر حکم وکولو چې پرېږده يې چې څه شی خوري هغه ورکړه او چې څه شی څښي هغه ورکړه په تکليف مې امتحان کړو اوس يې په راحت امتحان کوم اوس ښه قيمتي خوراک او قيمتي څښاک او قيمتي جامې ورته په مخه کې کېږدئ ... دو همداسې وکول لکن

حضرت عبد الله η داسې نه کول چې خوراک ته لګيا شوی وای بلـه د خپل ضرورت مطابق يې ترې خوراک او د ضرورت مطابق يې څښاک کولو او جامې يې هغه وخت بدلولې چې کله به کافي خيرنې شوې نور ټول خوراکونه ، نعمتونه او جامې په هماغه ځای پراته وو .

بيا قيصر وويل : چې يوه ښائسته ښځه ور ولئ هغه دې ورته ځان ښکاره کړي او کوښښ د وکوي چې د هغه توجه ځان ته جلب کړي ښځه يې ور وسته هغې ځان په ډير ښه شکل جوړ کړی وو ډير يې ځان ور وړاندې کړو لکن حضرت عبد الله η ترينه مخ اړولو او چې څومره کوښښ يې وکولو د هغه توجه يې ځان ته جلب نشوای کړلی ښځه ترينه په ناکامي کې را ووتله او په غصه کې يې ويل : دا تاسې زه څنګه انسان ته ور ليږلې وم زه نه پوهيږم چې دا انسان دی او که تيږه هغه پدې هم نه پوهيږي چې زه نر يم او که ښځه ...

کله چې پدې کارونو باندې قيصر ورڅخه نا اميده شو نو يې امر وکولو چې يوه لويه کړايي باندې کړئ او په هغه کې تېل جوش کړئ بيا يې حضرت عبد الله بن حذافة η د هغه جوش تيلو مخې ته ودرولو او يو مسلمان قيدي چې په زنځيرونو تړل شوی وو راوستلو او پدې تېلو کې يې ور وغورځولو د هغه جسد مبارک په تېلو کې ورک شو او ځای په ځای پکې شهيد شو او هډوکي يې پاس د تيلو په سر باندې ګرځېدل حضرت عبد الله η هغه هډوکو ته کتل پدې وخت کې قيصر ورته وويل : نصراني شه ....

حضرت عبد الله ورته وويل : نـــــــــــه ..

قيصر نور هم غصه شو او امر يې وکولو چې دی په دې تيلو کې ور وغورځوئ کله چې تېلو ته را

نېږدې کړل شو او د اور ګرمي وربانديې ولګېده له سترګو نه يې اوښکې راغلې ..

قيصر ورته خوشحال شو ... ورته يې وويل : نصراني شه ازاد به د کړم ..

حضرت عبد الله η ورته وويل : نـــــــه د خپل اسلام په بدل کې ازادي نه غواړم .

قيصر ورته ويل نو بيا ژاړې ولې؟

ده η ورته وويل : ژاړم پدې چې يو نفس مې دی او په دې تېلو کې له غورځولو سره به مړ شي والله زما خوښيږي چې زما سل نفسونه وای او پدې توګه د الله χ په لاره کې يو يو په همدې مرګ باندې مړ کېدلی ...

قيصر ورته وويل : ښه راشه زما سر مچي کړه خوشې به د کړم ...

حضرت عبد الله η ورته ويل : صحيح ده خو ما به هم خوشې کړې او لتا سره چې څومره د مسلمانانو بنديان دي ټول به خوشې کوې . .

قيصر ورته وويل : صحيح ده .

د هغه سر يې مچي کړو او هغه دی هم خوشې کړو او ورسره نور مسلمانان بنديان يې هم خوشې کړل کله چې د حضرت عمر η حضور ته ورغلل هغه ورته وويل : پداسې حالت کې چې ته له لوږې او تندې مړ کېدلې نو په هغه وخت کې خو د خنزير غوښه او شراب خوراک روا وو نو تا ولې نه خوړل؟

ده ورته وويل : ما نه غوښتل چې يو کافر ته دا خوشحالي ورکړم چې هغه پدې ضد کې کامياب شو چې

په يو مسلمان يې د خنزير غوښه وخوړه او يا يې شراب ورباندې وڅښل .

## پنځم حقيقت

مرګ الله χ موږ ته مقرر کړی دی او چې زمونږ په تقدير باندې ايمان وي نو پدې به مو هم ايمان وي چې دا مرګ د هغه تقدير برخه ده چې الله χ زمونږ لپاره مقدر کړی دی نو ددې امله چې څوک مړه کيږي ددې ضرورت نشته چې موږ ورپسې فرياد وکوو او ډير ورپسې وژاړو الله χ فرمايي :

نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ .[1]

ترجمه : موږ مقدر کړی دی په مېنځ ستاسې کې (ای مخلوقاتو) مرګ . او نه يو موږ عاجز چې څوک تيری راباندې و کړي.

نو موږ ته چې د چا دوست ، عزيز او ګران انسان مرګ واقع شي موږ بايد ووايو إِنَّا لِلّهِ وَإِنَّـا إِلَيْهِ رَاجِعونَ ځکه مرګ موږ ته هغه چامقرر کړی دی چې هغه موږ پيدا کړي يو او هېڅوک دا تقدير نشي بدلولی او نه په دنيا کې داسې کوم طاقت شته چې د مرګ وخت لږ وړاندې او يا وروسته کړي پدې اړه الله χ موږ ته د حضرت ابراهيم ν د مناظرې يوه واقعه نقل کوي چې هغه هم فرمايل چې د مرګ او ژوند مالک زما رب دی الله χ فرمايي :

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ أَنْ آتَاهُ الله الْمُلْكَ إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ قَالَ أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ قَالَ إِبْرَاهِيمُ

[1] سورة الواقعة آية ٦٠

فَإِنَّ الله يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنْ الْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنْ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ وَالله لا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ . [1]

ترجمه : آيا نه دي ليدلي تا (يعنى اى محمده ستا علم نه دى رسيدلي قصې د) هغه سړي (نمرود) ته چې جګړه (حجت بازى) ئې كړې وه ابراهيم ν سره په (حق د) رب د ده كې له دې جهته چې وركړى وو ده ته الله χ ملک (سلطنت) . كله چې وويل ابراهيم ν رب زما هغه ذات دى چې ژوندي كوي او مړه كوي وويل (نمرود) چې زه (هم) ژوندي كوم (واجب القتل په عفوې سره) او مړ كوم (بېګناه په ظلم سره) ، وويل ابراهيم ν نو بېشكه الله χ راولي نمر له (لوري د) مشرقه نو ته (اى نمروده !) راوله هغه (نمر) له (لورى د) مغربه !) نو حيران (او شرمنده) شو هغه چې كافر شوى وو (يعنى نمرود) ، او الله نه ښئي (د خير سمه صافه لاره) قوم د ظالمانو ته (په سبب د ظلم د دوى پر خپلو نفسونو)

په بل ځاى كې الله χ فرمايي :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لا تَكُونُوا كَالَّذِينَ كَفَرُوا وَقَالُوا لإخوانهم إِذَا ضَرَبُوا فِي الأرض أَوْ كَانُوا غُزًّى لَوْ كَانُوا عِنْدَنَا مَا مَاتُوا وَمَا قُتِلُوا لِيَجْعَلَ الله ذَلِكَ حَسْرَةً فِي قُلُوبِهِمْ وَالله يُحْيِ وَيُمِيتُ وَالله بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ . [2]

ترجمه : اى هغو كسانو چې ايمان ئې راوړى دى (اى مؤمنانو !) مه كيږئ تاسې لکه هغه كسان چې كافران شوي دي او ويل به دوى په (حق د) ورونو خپلو كې.

---

[1] سورة البقرة آية ٢٥٨
[2] سورة آل عمران آية ١٥٦

کله به چې سفر ته وتل دوی په ځمکه (په ملک)کې یا به وو دوی غزا کوونکي که چیرې وی دوی په نزد زمونږکې نو نه به وو مړه شوی دوی او نه به قتل کړی

شوي وو دوی ، دپاره د دي چې وګرځوي الله دا (ګمان) حسرت (افسوس ، ارمان) په زړونو د دوی کې. او الله ژوندي کول (ژوندی پریښودل) او مړه کول کوي (نه جنګ نه سفر او نه نور، او الله پر هغو (ټولو) شیانو چې تاسې ئې کوئ ښه لیدونکی دی (عالم په پټو او ښکاره وو).

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ الله اَلَيْكُمْ جَمِيعًا الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالأرض لا إِلَهَ إِلا هُوَ يُحْيِ وَيُمِيتُ فَآمِنُوا بِالله وَرَسُولِهِ النَّبِيِّ الامِّيِّ الَّذِي يُوومِنُ بِالله وَكَلِمَاتِهِ وَاتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ. [1]

ترجمه : ووایه (ای محمده ! چې) ای خلقو بېشکه زه رسول د الله χ یم تاسې ټولو ته (نه بعضو ته لکه نور انبیاء) هغه اللهχ چې(خاص) ده لره دی ملک(پاچاهي) د آسمانونو او د ځمکې، نشته هېڅ لایق د عبادت (په حقه سره) مګر هم دی دی چې ژوندي کول کوي او مړه کول کوي نو ایمان راوړئ (یقین و کړئ) پر اللهχ(چې واحد او لا شریک دی) او په رسول د دغه (اللهχ) چې نبي اُمي(نالوستونکی نالیکونکی دی) هغه رسول چې ایمان لري په اللهχ او په ګردو (ټولو) خبرو د اللهχاو متابعت و کړئ د ده دپاره د دي چې تاسې لاره وموموئ.

همدارنګه اللهχ فرمایي :

---

[1] سورة الاعراف آية ١٥٨

إِنَّ اللهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ والأرض يُحْيِ وَيُمِيتُ وَمَا لَكُمْ مِنْ دُونِ اللهِ مِنْ وَلِيٍّ وَلا نَصِيرٍ .[1]

ترجمه : بېشکه چې اللهχ (خاص) ده لره دی سلطنت د آسمانونو او د ځمکې، ژوندي کول او مړه کول کوي، او نشته تاسې ته بې له اللهχ څخه هېڅ ولي (دوست ساتونکی له آفاتو) او نه مدد ګار (خلاصوونکی له بلیاتو) .

اللهχ فرمايي :

هُوَ يُحْيِ وَيُمِيتُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ.[2]

ترجمه :هم دغه (اللهχ) ژوندي کول او مړه کول کوي او هم ده ته بیا بیولی کیږئ (په قیامت کې لپاره د جزا)

اللهχ فرمايي :

وَإِنَّا لَنَحْنُ نُحْيِ وَنُمِيتُ وَنَحْنُ الْوَارِثُونَ.[3]

ترجمه : او بېشکه موږ خامخا هم دا موږ ژوندي کول او هم وژل کوو او هم دا موږ وارث باقي پاتې کېدونکي يو (پس له فنا د عالمیانوهم) .

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

وَهُوَ الَّذِي أَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ إِنَّ الإنسان لَكَفُورٌ.[4]

---

1 **سورة التوبة آية ١١٦**
2 سورة یونس آية ٥٦
3 سورة الحجر آية ٢٣
4 **سورة الحج آية ٦٦**

ترجمه : او دغه (اللهχ) هغه (قادر مطلق دی)چې ژوندي کړي يې يئ تاسې (په در کولو د روح سره پس له هغه چې نطفې وئ) بيا به مړه کاندي تاسې (کله چې اجل مو پوره شي) بيا به ژوندي کړي تاسې (په قيامت کې په بعث سره)، بېشکه انسان خامخا ناشکره دی .

اللهχ فرمايي :

وَاتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ آلِهَةً لا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ وَلا يَمْلِكُونَ لانفُسِهِمْ ضَرًّا وَلا نَفْعًا وَلا يَمْلِكُونَ مَوْتًا وَلا حَيَاةً وَلا نُشُورًا. [1]

ترجمه : او نيولي دي دغو (کفارو) بی له اللهχ نور معبودان چې نشي پيدا کولی (دغه معبودان) هېڅ شی حال دا چې دوی پخپله پيدا کول شي او نه دي مالکان دپاره د ځانونو خپلو د ضرر (د دفع کولو) او نه د نفعې(د رسولو) او نه دي مالکان په وژلو د چا او نه په ژوندي کولو د چا او نه په بيا ژوندي پورته کولو د مړيو (له قبوروبعث ته) .

د حضرت ابراهيم ۷ په واقعه کې اللهχ فرمايي چې هغه فرمايل :

وَالَّذِي يُمِيتُنِي ثُمَّ يُحْيِينِ . [2]

ترجمه :او هغه (رب)چې مړ کوی می (په دنيا کې) بيا به می ژوندی کوی (په عقبا کې)

اللهχ فرمايي :

[1] سورة الفرقان آية ۳
[2] سورة الشعراء آية ۸۱

**الله الَّذِي خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ هَلْ مِنْ شُرَكَائِكُمْ مَنْ يَفْعَلُ مِنْ ذَلِكُمْ مِنْ شَيْءٍ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى عَمَّا يُشْرِكُونَ.** [1]

ترجمه : الله هغه (مطلق قادر دی)چې پیدا کړي ئې يئ تاسې(په در کولو د روح سره) بیا ئې روزي درکړې ده تاسې ته بیا مړه کوي بیا ژوندي کوي تاسې(په بعث) سره آیا شته له دغو شریکانو ستاسې داسې څوک چې کولی شي هغه له دغو (څلورو واړو کارونو) څخه کوم شی؟ (بلکه نشي کولی) پاکي ده الله χ ته او ډیر لوی پورته دی شان د الله χ له دې نه چې شریک پیدا کوي دوی (له الله χ سره)

الله χ فرمایي

**الله يَتَوَفَّى الانْفُسَ حِينَ مَوْتِهَا وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا فَيُمْسِكُ الَّتِي قَضَى عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الاخْرَى إِلَى أَجَلٍ مُسَمًّى إِنَّ فِي ذَلِكَ لآيات لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ.** [2]

ترجمه : الله راکاږي(قبضوي) نفسونه په وخت د مرګ د دوی او هغه نفس چې نه وي مړ (هغه راکاږي) په خوب د هغه کې پس وساتي هغه (نفس) چې حکم کړی پر هغه د مرګ او بېرته راليږي (بدن ته) هغه بل (نفس) تر نيټې په نامه کړل شوې پورې، بېشکه په دغه (قبض، امساک، ارسال)کې خامخا ډير دلائل د قدرت دي دپاره د هغه قوم چې فکر کوي (او عبرت ترې اخلي لېکن نه کوي فکر پکې کفار).

---

[1] سورة الروم آية ٤٠
[2] سورة الزمر آية ٤١

او دا تر لوی مرګ نه وړاندې وړوکی مرګ (خوب) هم انسان ته اللهχ ورکوي فرمایي چې دا هم موږ تاسې ته درکوو اللهχ فرمایي :

وَهُوَ الَّذِي يَتَوَفَّاكُم بِاللَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ لِيُقْضَى أَجَلٌ مُّسَمًّى ثُمَّ إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ * وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُم حَفَظَةً حَتَّىَ إِذَا جَاء أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لاَ يُفَرِّطُونَ. [1]

ترجمه : او الله هغه (لوی ذات) دی چې وفاتوي (حصاروي او ویده کوي) تاسې په شپه کې او پوهیږي په هر هغه څه چې کسب کړی وي تاسې په ورځې کې (له طاعت او مصیبت څخه) بیا پاڅوي تاسې (له خوبه) په دغه (ورځ) کې چې پوره کړ شي اجل (نیټه) مقرره شوی ، بیا خاص هم ده ته بېرته ورتلل ستاسې دي بیا به خبر کړي (اللهχ) تاسې په (جزاء) د هغه څه چې وئ تاسې چې کول به مو . (په دنیا کې له خیر او شره) او هم دی دی غالب د پاسه په بند ګانو خپلو او لیږي پر تاسې ساتونکي (له ملائکو چې هغه لیکونکي د اعمالو ستاسې کرام الکاتبین دي) تر هغه پورې کله چې راشي یو ستاسې ته مرګ قبضوي روح د ده لیږلی شوی (پرښتې زمونږچې ستاسې د ارواحو د قبضولو دپاره لیږلی کیږی) او دوی هیڅ تقصیر نه کوی (د امر په امتثال کې د اجل له پوره کیدلو څخه وروسته) .

په بل ځای کې اللهχ فرمایي :

[1] سورة الانعام آية ٦٠، ٦١

قَالُوا رَبَّنَا أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا فَهَلْ إِلَى خُرُوجٍ مِنْ سَبِيلٍ. [1]

ترجمه : (نو) وبه وائي(دا كفار) اى ربه زمونږ مړه دې كړو مونږ دوه ځلې او ژوندي دې كړو موږ دوه ځلې پس قايل شو موږ په ګناهونو خپلو پس آيا شته د وتلو(زمونږ ته له دغه دوزخه) كومه لاره !

الله χ فرمايي :

كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللهِ وَكُنتُمْ أَمْوَاتًا فَأَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ. [2]

ترجمه : څرنګه كافران كيږئ په اللهχباندې حال دا چې وئ تاسې مړه بيا (اللهχ) ژوندي كړئ تاسې(د روح په دركولوسره) بيا به (اللهχ) مړه كړي تاسې بيا به (اللهχ) ژوندي كړي تاسې (په بعث سره) بيا به خاص هم ده χ ته وروستى شى . (د خپلو اعمالو د جزا لپاره).

الله χ فرمايي :

هُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ فَإِذَا قَضَى أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ. [3]

ترجمه : (اللهχ) هم هغه (ذات) دى چې ژوندي كول كوي او مړه كول كوي پس هر كله چې اراده حكم و كړي د يوه كار پس بېشكه هم دا خبره ده چې

---

[1] **سورة غافر آية ١١**
[2] سورة البقرة آية ٢٨
[3] **سورة غافر آية ٦٨**

وائي ورته چې(موجود) شه پس هغه موجود شي (بی له مهلته) .

اللهχپه سورة دخان کې فرمايي :

**لا إِلَهَ إِلا هُوَ يُحْيِ وَيُمِيتُ رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمْ الاوَّلِينَ.** [1]

ترجمه: نشته لائق د عبادت بل هېڅوک مګر هم دی دی چې ژوندي کوي او وژل کوي (دغه اللهχ) رب ستاسې دی او رب د پلرونو ړومبنيو ستاسې دی .

## شپږم حقيقت

مرګ د ټولو ژونديو شيانو لپاره ليکل شوی دی او لدې څخه هېڅ ژوندی مستثنی نه دی اللهχ فرمايي :

**كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ وَنَبْلُوكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً وَإِلَيْنَا تُرْجَعُونَ.** [2]

ترجمه :هر يو نفس څکونکی د مرګ دی (يعنی مری)، او ازمايو موږتاسې(په دنيا کې) په شر ، بدي او په خير ، نيکي سره په ازموينه ،او خاص موږ ته به

راوستلی شئ تاسې(دجزا دپاره) .

که په دنيا کې يو کس اللهχ له مرګ نه مستثنی کولی نو رسول اللهγ به يې مستثنی کړی وو اللهχ فرمايي :

---

[1] سورة الدخان آية ٨
[2] سورة الانبياء آية ٣٥

وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ أَفَإِنْ مِتَّ فَهُمُ الْخَالِدُونَ . [1]

ترجمه : او نه دى ګرځولى موږ هېڅ يوه انسان ته پخوا له تانه (اى محمده) تل ژوندي پاتې کېدل (په دنيا کې) آيا پس که ته مړ شې پس دوى به تل پاتې کېدونکي وي (په دنيا کې بلکه داسې نه ده)

لکن رسول اللهγ ته هم همېشه ژوند نه دى ورکړل شوى او اللهχورته فرمايي چې ته به وفات کيږي او دا خلک به هم وفات کيږي اللهχ فرمايي :

إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُونَ . [2]

ترجمه : بېشکه چې ته هم مړ کيدونکى ئې او بېشکه دوى هم مړه کېدونکي دي (او هېڅوک بې له اللهχپاتې کېدونکي نه دي).

په بل ځاى کې اللهχ فرمايي :

ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ لَمَيِّتُونَ. [3]

ترجمه : بيا بېشکه تاسې پس له دى ژوندى کولو د تاسې (په دغه پاس طريقه سره) خامخا مړه کيدونکى يئ

په دنيا کې هېڅ داسې شى نشته چې هغه فنا ونلري بغير د اللهχد ذات اقدس نه يوازې هماغه ذات دى چې هغه نه ويده کيږي ، نه وربانديې غفلت راځي او نه ستړى کيږي ، نه بيماري لري

---

[1] سورة الانبياء آية ٣٤
[2] سورة الزمر آية ٣٠
[3] سورة المؤمنون آية ١٥

او نه وربانډې مرګ راځي همېشه حی او قیوم ذات دی او د اللهχ په مبارکو صفاتو کې یو حی دی او د اللهχ په صفاتو کې د حی په معنی کې علماء کرام فرمايي : **والحي في صفة الله عز وجل هو الذي لم يزل موجودا ، وبالحياة موصوفا ، فالحياة له صفة قائمة بذاته** (حی د اللهχپه صفاتو کې پدې معنی دی چې هغه ذات دی چې همیشه ژوند دی او په حیات باندې موصوف دی نو دا ژوند یو صفت دی چې دده تر ذات پورې قائم دی) .

ددې صفت په اړه ابن ابي العز الحنفي ρ فرمايي : **إنه حي لا يموت ؛ لأن صفة الحياة الباقية مختصة به تعالى دون خلقه فإنهم يموتون** .

ترجمه : اللهχ هغه ذات دی چې ژوندی دی او مرګ نلري ځکه دا د ژوند صفت باقي دی او مختص دی په اللهχ پورې او د الله χپه مخلوق کې دا صفت د همېشه لپاره نشي راتلی ځکه دوی ټول مړه کېدونکي او فناء کېدونکي دي .

او د اللهχپه غوره صفاتو کې الحی القیوم دي په اسماء الحسنی کې غوره نومونه دي او ددې په اړه خو حتی دا هم ویل کیږي چې همدا اسم اعظم دی او دا په قرآن کریم کې په دریو ځایونو کې یو ځای سره ذکر شوي دي .

اللهχ فرمايي : **اللّه لاَ إِلَهَ إِلا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ** .[1]

ترجمه : الله (چې دی) نشته هیڅوک لایق د عبادت مګر هم دی دی چې تل ژوندی، په یو حال باقی ، قایم ، کامل ، تدبیر والا دی

[1] سورة البقرة آية ٢٥٥

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

وَعَنَتِ الْوُجُوهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ ۖ وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا .[1]

ترجمه : او ذليل شول (خاوندان د) مخونو هغه تل ژوندى قائم تدبير والا د عالمو ته او په تحقيق خراب نااميده شو هر هغه څوک چې پورته ئې کړ بار د ظلم.

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لَا يَمُوتُ وَسَبِّحْ بِحَمْدِهِ ۚ وَكَفَىٰ بِهِ بِذُنُوبِ عِبَادِهِ خَبِيرًا .[2]

ترجمه : او توکل و کړه په تل ژوندي قائم په تدبير هغه (الله) چې (له سره) نه مري او تسبيح ووايه سره له ثناء د ده ، او بس کافي دى هغه په ګناهونو د بندګانوخپلو ښه خبردار.

نو اللهχ هغه ذات دى چې ژوندي کول او مړه کول کوي او اللهχ پخپله همېشه ژوندى ذات دى او په هغه باندې مرګ نه راځي او هغه له مرګ نه منزه او پاک دى اللهχ فرمايي :

ذَٰلِكَ بِأَنَّ الله هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّهُ يُحْيِي الْمَوْتَىٰ وَأَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِير .[3]

ترجمه: دغه (راز راز (قسم قسم) پيدا کول او ژوندى کول) په سبب د دې دي چې بېشکه الله χ هم

---

[1] سورة طه آية ۱۱۱
[2] سورة الفرقان آية ٥٨
[3] سورة الحج آية ٦

دى دى حق (ثابت موجود دائم) او بېشكه دى ژوندي كوي مړى (د نطفې او د ځمكې د ژوندي كولو په شان) او بېشكه الله په هر شي (چې اراده و كړى) ښه قادر دى (چې ځينې له هغو څخه دغه راز راز (قسم قسم) پيدا كول او ژوندي كول دي)

په بل ځاى كې اللهχ فرمايي :

هُوَ الْحَيُّ لاَ إِلَهَ إِلا هُوَ فَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ .[1]

ترجمه : هم دى ژوندى دى تل په يو حال باقي قائم كامل تدبير والا نشته بل هېڅوك لائق د عبادت مګر هم دى دى يو ائحې پس وبولى هم دى په دې حال چې خالص كوونكى يئ تاسې خاص دغه (اللهχ) لره (د) دين (له شر كه) ټوله ثناء ده خاص اللهχلره چې رب پالونكى د ټولو عا لميانو دى .

په بل ځاى كې اللهχ فرمايي : هُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ فَإِذَا قَضَى أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ.[2]

ترجمه : (اللهχ) هم هغه (ذات) دى چې ژوندي كول او مړه كول كوي پس هر كله چې اراده حكم و كړي د يوه كار پس بېشكه هم دا خبره ده چې وائي ورته چې (موجود) شه پس هغه موجود شي (بې له مهلته) .

[1] سورة غافر آية ٥٨
[2] سورة غافر آية ٦٨

اللهχ فرمايي وَهُوَ الَّذِي يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ ۚ وَلَهُ الْمَثَلُ الْأَعْلَىٰ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ. [1]

ترجمه : او (اللهχ) هم هغه (مطلق قادر) دى چې اول ځلى پيدا كوي خلق بيا به راژوندي كوي (دا خلق) او دغه (بيا ژوندي راپاڅول هم) ډير آسان دي په دغه (اللهχ) او خاص الله لره دى شان، صفت ډير لوى، لوړ (اوچت) په آسمانونو كې او په ځمكه كې (له عقل او ادراک څخه پورته) او هم دى دى ښه غالب، قوى (د احكامو په انفاذ) ښه حكمت والا (چې هر كار په تدبير او مصلحت سره كوي).

[1] سورة الروم آية ٢٧

# اوم حقیقت

اللهχپدې مرګ سره هر ظالم ، جابر او متکبر تحديد کوي او هغوی ته ور په يادوي چې ستاسې دا د ظلم دوران فاني کيدونکی دی او آخر به تاسې د هغه ذات سره مخامخ کيږئ چې د هغه په وړاندې ستاسې هرڅه ښکاره دي او دا تحديد په قرآن کريم کې په مختلفو ځايونو کې راغلی دی د مثال په ډول اللهχ فرمايي :

فَلَوْلا إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ (83) وَأَنْتُمْ حِينَئِذٍ تَنْظُرُونَ (84) وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْكُمْ وَلَكِنْ لا تُبْصِرُونَ (85) فَلَوْلا إِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ (86) تَرْجِعُونَهَا إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ (87).[1]

ترجمه : نو ولې په هغه وقت کې چې ورسيږی (روح د سږی) ستوني ته او (حال دا وي چې) تاسې په دغه وقت حاضر اوريدونکي نظر کوونکي يئ هغه ته او موږ ډير نژدې يو هغه ته (په علم او قدرت) له تاسې څخه مګر نه وينئ او نه يوهيږئ تاسې پس ولې که يئ تاسې چې جزاء نه درکوله کيږی او نه ژوندي کېږئ نو بېرته راو ګرځوئ تاسې دا (روح) که چيرې يئ تاسې رښتيني(په دې ګمان خپل کې چې جزاء نشته).

معنی دا چې هغه وخت تاسې د يو کس چې ځانکدن يې وي په خوا کې ناست وئ او د هغه روح حلقوم ته (د وتلو لپاره) راشي پدې حالت کې موږ او زمونږ فرښتې هغه ته لتاسې نه ډير نيږدي وو خو تاسې موږ نه وينئ نو که تاسې ځان ته ډير په کبرکې ياست او که په تاسې کې څه طاقت هم وي نو په ده کې هغه روح چې له ده څخه په وتلو کې دی بېرته را وګرځوئ او که تاسې دا کار نشي

[1] سورة الواقعة

کولئ نو ستاسې په وړاندې دوه لارې دي یا خوبه تاسې دا منئ چې تاسې عاجز مخلوق یاست او په تاسې باندې چې الله χ هرڅه کوي تاسې هېڅ نشئ کولی او یا خو به په خپل ضد کې پاتې کیږئ او د خپل بد انجام انتظار به کوئ .

په بل ځای کې الله χ فرمایي :

**كَلاَّ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ (26) وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ (27) وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ (28) وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ (29) إِلَى رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ (30).** [1]

ترجمه : داسی (چې دنیا خوښوي پر آخرت) کله چې ورسیږي (سا) هډو کي د ستوني ته . او وبه ویلی شي (یعنی وبه وائي هغه څوک چې چاپېر له مریضه دي) څوک دی دم کوونکی (په هغه رنځور باندې چې جوړ شی او روح ئی بېرته ور وګرځي) او یقین کړي هغه مریض) چې بېشکه په ده (باندې راغلی) دی وقت د فراق جدائي (له دنیا او خپلوانو). او تاویږی یوه پنډی (د ده) له بلی پنډی (د ده) سره (له هیبته د مرګ). په لوري د رب ستا په دغې ورځې کې ورتله دي (د ټولو مخلوقاتو لپاره د مجازاتو).

پدې آیتونو کې الله χ خپلو بندګانو ته نصیحت کوي او په خاصه توګه کبر کونکو او هغه کسانو ته چې ځان ورته ډېر لوی ښکاره کیږي هغوی ته یو اخطار ورکوي چې کله د یو کس روح هډو کي د ستوني ته ورسیږي پدې وخت کې به خطر زیات شي او دده خپلوان به هرې وسیلې ته لاس واچوي او پدې وخت کې به هرې خوا ته ممکنه منډه وکوي لکن هېڅوک به څه ونشي کولی او هرڅوک به پدې

[1] سورة القيامة

پوه شي چې اوس له دنيا نه جدايي ده او سختي يوه په بله پسې را زياتې شوې او هغه روح چې په بدن کې وي پدې وخت کې به د وتلو په لاره روان شي او پدې وخت کې به هېڅ طبيب هېڅ دوا او هېڅ وسيله کار ورنه کړي ...

دا ډول آيتونه الله χ ددې لپاره را لېږلي دي چې هر وخت بندګانو ته مرګ وريـاد کړي او هغوی ته ور په زړه کړي چې داسې حالت ستاسې په هر يو کس راتلونکی دی نو هغه کسان چې الله χ ورته هدايت وکوي سمې لارې ته مخه کړي او له خپلو بدو نه توبه وباسي او سرکشه خلک په خپلو عملونو پاتې شي چې دا آيتونه هغوی ته هېڅ فايده ونه کوي او نه ورڅخه پند او عبرت واخلي نو دا يې د هلاکت سبب شي .

## آتم حقيقت

مرګ يو ډول مصيبت دی الله χ ورته په قرآن کريم کې هم مصيبت ويلی دی:

فَأَصَابَتْكُمْ مُصِيبَةُ الْمَوْتِ .[1]

ترجمه : بيا ورسيږی تاسې ته مصيبت د مرګ .

پدې کې هېڅ شک نشته چې مرګ د مړي د کورنۍ لپاره مصيبت دی او چې له دې پلوه ورته وګورو چې د مړي نه هم هرڅه په دنيا کې پاتې شول او د کومو شيانو چې مالک وو د مرګ نه وروسته يې نور خلک مالکان شول سره ددې چې خواري ورپسې ده کړې وه ، په را جمع کولو کې يې تکليف ده ويستلی وو لکن اوس د نورو خلکو مال شو ، هغه کسان چې ده به ورته اولاد ويل هغه اوس له ده

[1] سورة المائدة آية ١٠٦

نه پاتې شول او ټول خپلوان دده لپاره بدل شول هغه چې له ده سره به يې مينه کوله اوس به دی په خاورکې کيږدي او دوی به ترېنه بېرته خپلو کورونو ته راستانه شي هغه جامې چې د قبر په خاورو باندې سپېرې شوې وې هغه به اوس پاکې کړي او يو څه وخت وروسته به په خپل ژوند کې مصروف شي نو دا يو ډول مصيبت د مړي لپاره هم دی .. نو ددې ټولو خبرو سره بنده څه کولی شي چې دا مصيبت ورته مقرر شوی دی او بنده هېڅ اختيار نه لري چې دا له ځانه لرې کړي صرف يو کار کولی شي چې په خپل ژوند کې هر وخت ياد لري چې دی مړ کيږي نو ځان هر وخت مرګ ته تيار وساتي .

## نهم حقيقت

مرګ يو نعمت دی خو دا عجيبه ښکاره کيږي چې مخکې موږ ويل مرګ مصيبت دی او دلته موږ وايو مرګ يو نعمت دی او نعمت ځکه دی چې اللهχورته په قرآن کريم کې نعمت ويلی دی اللهχ فرمايي : **كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ (26) وَيَبْقَى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالإِكْرَامِ (27) فَبِأَيِّ آَلاَءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ (28).** [1]

ترجمه : ټول هغه څوک چې په دی (ځمکه)کې دی فانی کيدونکي دي او باقي به پاتې شی ذات د رب ستا چې خاوند د جلال لوئی دی او (خاوند د) اکرام عزت ور کولو – عظمت – فضل – احسان دی . پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب د ستاسې دروغ وايئ (او منکريږئ ترى اى انسانانو او پيريانو بلکه نشئ کېدی) .

---

[1] سورة رحمن

پدي آيتونو کې تاسې ته ښکاره کيږي چې اللهχ مرگ ذکر کړی دی او بيا يې ويلي دي چې تاسې به د اللهχ د کوم کوم نعمت تکذيب وکوئ معنی دا چې دا مرگ او پناه د اللهχ له نعمتونو څخه دي معنی دا چې هغه کس چې صالح او نېک عمل وي او په هر حالت کې د اللهχ په ذکر مصروف وي او په دنيا کې يې اللهχ ته مخ اړولی وي د هغه لپاره مرگ يو نعمت دی چې انسان د دنيا له غمونو څخه واخلي او د آخرت نعمتونو ته يې ورسوي .

## لسم حقيقت

مرگ هم د انسان په اوږده سفر کې چې د آخرت په لور يې کوي يوه مرحله ده او د سفر يو پړاو دی چې موږ يې قطع کوو او بيا موږ په اخرت کې جنت ته او يا اللهχ مه کړه دوزخ ته رسيږو ... اللهχ فرمايي :

**وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنْ سُلَالَةٍ مِنْ طِينٍ (12) ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَكِينٍ (13) ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ الله احْسَنُ الْخَالِقِينَ (14) ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ ذَلِكَ لَمَيِّتُونَ (15) ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ (16).** [1]

ترجمه : او قسم دی خامخا په تحقيق پيدا کړی دی موږ انسان (آدم) له خالصې(صافې له خيري ويستلې شوې) خټو نه بيا و گرځاوه کيښود موږ(اولاده د) دغه (آدم) نطفه (تړلی څاڅکی د مني) په يو قرار گاه محکم (رحم کې) بيا وگرځوله موږ دا نطفه ټوټه د وينو (کلکه

[1] سورة المؤمنون

سریښناکه) بیا وګرځوله موږ دغه ټوټه د وینویوه وږه بوټئ د غوښو بیا وګر ځوله موږ دا بوټئ د غوښو هډو کی بیا ور واغوستله موږ دې هډوکو ته (پس له پیدا کولو د رګونو او د پلو او نورو) غوښه بیا مو (ژوندی) پیدا کړ دی په پیدا ایښت بل سره (چې نوی صورت) پس ډیر لوړ لوی دی شان د الله (په قدرت او په حکمت خپل کې) چې ډیر ښه پیدا کوونکی (صورت ترونکی) دی (له نورو ټولو پیدا کوونکیو صورت ترونکیو څخه خلقاً) بیا بېشکه تاسې پس له دې ژوندي کولو د تاسې (په دغه پاس طریقه سره) خامخا مړه کیدونکی یئ بیا بېشکه تاسې په ورځې د قیامت کې بیا ژوندي راپاڅول شئ (له قبورو لپاره د جزاء) .

پدې آیتونو کې لکه ددې اوږده سفر چې نور پړاوونه ذکر شوي دي په همدې ډول مرګ هم یاد کړل شوی دی چې انسان به لدې پړاو نه تیریږي او د خپل سفر آخر ته به رسیږي .

## يولسم حقيقت

مرګ يوه حادثه ده چې تر اوسه پورې يې چا ته هم وخت او ځاى نه دى معلوم چې كله به واقع كيږي او چېرته به واقع كيږي اللهχ فرمايي :

وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ .[1]

ترجمه : او نه پوهيږى هيڅ نفس چې په كومه ځمكه كې به مرى

معنى دا چې موږ ته نه ده معلومه چې څه وخت به مړه كيږو او چېرته به مړه كيږو او پدې كې هم د اللهχ حكمت دى ځكه كه چېرته د انسان د مرګ وخت انسان ته ور معلوم شي اګر كه هغه ډېر وخت وروسته هم وي نو انسان به يوه يوه ورځ تر هغه وخته پورې شماري او د دنيا له نعمتونو څخه به هېڅ خوند وانخلي همدارنګه كه د انسان د مرګ ځاى انسان ته ورمعلوم شي نو په هغه خوا به دى هېڅ سفر نه كوي اګر كه ده ته به هغه ځاى ته د سفر لپاره ښه وجه وي خو دى به هلته ددې امله سفر نه كوي هسې نه چې دا وخت زما د مرګ وخت وي چې زه هلته ورشم مړ به شم .

## دولسم حقيقت

هغه مرګ چې د اللهχلپاره وي يعني يو څوک د اللهχ د رضا لپاره مړ شي ډېر بدل دى له هغه مرګ نه چې د اللهχلپاره نه وي اللهχپه قرآن كريم كې او رسول اللهγ په احاديثو كې موږ ته ښودلي دي چې

[1] سورة لقمان آية ٣٤

هغه مرګ چې د اللهχد رضا لپاره وي هغه ډېر غوره دی اللهχ فرمايي :

**وَلَئِنْ قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ الله اوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِنَ الله وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِمَّا يَجْمَعُونَ (157) وَلَئِنْ مُتُّمْ أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى الله تُحْشَرُونَ (158).** [1]

ترجمه : او قسم دی خامخا که ووژلی شوئ تاسې په لاره د الله کې يا مړه شوئ تاسې (په لاره د الله کې چې طاعت دی) نو خامخا مغفرت له جانبه د الله او رحمت (مهرباني د الله) خير (ډير ښه) دی له هغو (مالونو) چې دوی ئې جمع کوی. او قسم دی که مړه شوئ تاسې يا ووژلی شوئ تاسې نوخامخا به الله ته راجمع کړل شئ تاسې (ټول).

اللهχ پدې آيتونو کې ښکاره کړه چې د اللهχ په لاره کې مرګ هغه څه نه دي چې انسان بايد ورڅخه وډار شي بلکه هغه شی دي چې خلک بايد هڅه وکړي چې حاصل يې کړي او هغه کس چې د اللهχ په لاره کې ورته مرګ ورکړل شي دا له هغه څه نه غوره دی چې د دنيا خلک يې د ځان لپاره جمع کوي ځکه دا خلک چې په هر حالت کې مړه شي د دوی ورتلل اللهχ ته دي نو بختور هغه خلک وي چې په ژوند کې او يا په خپل مرګ سره يې اللهχرضا کړی وي .

---

[1] سورة آل عمران

که چېرته په موږ کې د شیطان حرکت نه وي نو بیا چې موږ پدې پوه شو چې د اللهχ په لاره کې مرګ ډېر غوره دی او پدې خبره هم پوه شو چې مرګ به موږ ته خامخا راځي نو بیا د اللهχ په لاره کې له مرګ نه انسان باید بالکل ونه ډار شي بلکه د هرانسان باید دا تمنا وي چې د اللهχ په لاره کې ورته مرګ نصیب شي ځکه له مرګ نه خو تېښته نشته او که هرڅو کوم انسان له مرګ نه د لرې تېښتې کوښښ وکوي خو چې کله یې د مرګ وخت راشي نو مرګ به ده ته ورږ ورسیږي اللهχ فرمايي : قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِي تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُ مُلاقِيكُمْ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَى عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ .[1]

ترجمه : مرګ هغه چې تښتئ تاسې له هغه نه (او نه ئې غواړئ) پس بېشکه هغه مرګ ضرور رسیدونکی دی تاسې ته بیا به بوتلی شئ تاسې په لوري د (هغه) ښه پوهېدونکی په پټو او په ښکاره ووباندې پس خبربه کړي تاسې په هغو (کارونو باندې) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې نو جزاء به پرې درکړی)

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

قُلْ لَنْ يَنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ إِنْ فَرَرْتُمْ مِنَ الْمَوْتِ أَوِ الْقَتْلِ وَإِذًا لاَ تُمَتَّعُونَ إِلاَّ قَلِيلاً.[2]

ترجمه :ووایه (ای محمده دوی ته)چې له سره به نفعه نه رسوي تاسې ته تېښته که چېری وتښتئ

[1] سورة الجمعة آية ٨
[2] سورة الاحزاب آية ١٦

تاسې له مرګه یا له قتله او کله چې وتښتیدئ نو ژوندي به پاتې نه کړی شئ مګر لږ (مدت) .

په بل ځای کې الله χ فرمایي:

أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِكُكُمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِي بُرُوجٍ مُشَيَّدَةٍ. [1]

ترجمه :هر چیرته چې اوسئ تاسې وبه مومي تاسې لره مرګ اګر که اوسئ تاسې په برجونو (په کلاګانو ، مانیو) ډیرو لوړو محکمو مضبوطو کړی شویو کې که هرڅو موږ د ځان ساتنه وکوو ، د وسپنې قلا له ځان نه تاو کړو ، په دروازه کې حفاظتي دستې او ډلې مقررې کړو خو آخر به مرګ په موږ پسې راشي او آخر به هغه وخت راشي چې الله χ یې په اړه فرمایي :

وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ذَلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيدُ . [2]

ترجمه : او راغلې بې هوشي سختي د مرګ لپاره د دې چې په ستر ګوئې وویـنئ په حق سره دا مرګ هغه دی چې وې به ته له دې ځخه په ځنګ کېدونکی او نه وې پرې اقرار کوونکی.

ددې امله چې دا مرګ خامخا او په یقیني توګه راتلونکی دی او ددې مخه هېڅوک هم نشي نیولی نو اللهχدېته یقین ویلی دی الله χ فرمایي :

وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّى يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ . [3]

ترجمه : او عبادت کوه د رب خپل تر هغه پوری چې راشی تاته یقین (یعنی مرګ).

---

[1] سورة النساء آية ٧٨
[2] سورة ق آية ١٩
[3] سورة الحجر آية ٩٩

# څوارلسم حقیقت

خلک په دنیا کې په دوه ډوله دي ۱. نېک بختان ۲. بد بختان په دنیا کې خو هر انسان فکر کوي چې دی نېک بخت دی لکن په آخرت کې به هر چاته ور معلوم شي چې دی نېک بخت او که بد بخت دی
هغه کسان چې هغوی نېک بختان دي اللهχد هغوی په اړه فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ قَالُوا رَبُّنَا الله ثُمَّ اسْتَقَامُوا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةُ أَلاَّ تَخَافُوا وَلاَ تَحْزَنُوا وَأَبْشِرُوا بِالْجَنَّةِ الَّتِي كُنْتُمْ تُوعَدُونَ .[1]

ترجمه : په حقیقت کې هغه کسان چې ويې ویل رب زمونږ الله χ دی ملائکې به ورته راځي ورته وايي به مه ډارېږئ او مه خفه کېږئ او د هغه جنت زيری قبول کړئ چې لتاسې سره يې وعده کېده .

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ طَيِّبِينَ يَقُولُونَ سَلاَمٌ عَلَيْكُمُ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ .[2]

ترجمه : هغه (کسان)چې قبضوي ارواح) د دوی ملائکې په دې حال کې چې پاک دي دغه (متقین له شر که او معصيته) وائي به دغه (ملائک دوی ته چې د الله) سلام دی وي پر تاسې باندې ننوزئ ! جنت ته په سبب د هغو نيکيو چې وئ تاسو چې عمل به مو کاوه (په دنیا کې)

---

[1] سورة فصلت آية ۳۰
[2] سورة النحل آية ۳۲

او هغه کسان چې هغوی بد بختان دي اللهχد هغوی په اړه فرمايي :

وَلَوْ تَرَى إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُو أَيْدِيهِمْ أَخْرِجُوا أَنْفُسَكُمُ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُولُونَ عَلَى الله غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ آيَاتِهِ تَسْتَكْبِرُونَ . [1]

ترجمه : او که ووينې ته (ای محمده !) ظالمان يعنی کافران په هغه وخت کې چې ظالمان په (باطني او روحاني) سختيو د مرگ کې وی حال دا چې پرښتې (د عذاب) غځوونکې وي د لاسونو خپلو (د روح د قبض دپاره نو وائي دوی ته چې) راوباسئ تاسې ارواح خپل (چې ئې قبض کړو که ئې ايستی شئ يا ئې له عذابه وباسئ !) نن ورځ به جزا درکړه شي تاسې ته عذاب سپکوونکی (يعنی چې له سخت تکليف سره ذلت او رسوائي هم وي) په سبب د هغه چې وئ تاسې چې ويل به مو پر الله (وينا) ناحقه او وئ تاسې چې له آيتونو د ده څخه به مو تکبر کاوه (او نه به مو منل ، نو وبه گورئ يوه قبيحه منظره) .

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ . [2]

ترجمه : نو څرنگه به وی (حال د دوی) کله چې قبض کوي دوی لره پرښتې (سائی راکاړی) وهي به دوی مخونه د دوی او شاگانې د دوی.

بيا هغه کسان چې هغوی کم بخت او بد بخت وي په خپل ژوند کې د مرگ او آخرت څخه نا خبره وي د

[1] سورة الانعام آية ٩٣
[2] سورة محمد آية ٢٧

ﷲχدين او عبادت ته يې شا کړې وي هغوی چې کله مړه کيږي د هغوی مختلف حالتونه وي د مثال په ډول .

## ځينې يې بېرته دنيا ته ګرځېدل غواړي

ځينې داسې وي چې هغوی له ﷲχ نه غواړي چې دوی بېرته دنيا ته وګرځوي دوی به نېک اعمال وکوي ﷲχ د هغوی په اړه فرمايي :

حَتَّى إِذَا جَاءَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ارْجِعُونِ (99) لَعَلِّي أَعْمَلُ صَالِحًا فِيمَا تَرَكْتُ كَلَّا إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَائِلُهَا وَمِنْ وَرَائِهِمْ بَرْزَخٌ إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ(100) .[1]

ترجمه : تر هغه پوری کله چې راشی يو د دوی ته (اسباب د) مرګ نو وبه وائي ای ربه ځما بېرته و ګرځوه ته ما (دنيا ته) ښائي چې زه عمل و کړم نېک په هغه ځيز کې چې بېرته پريښي دي ما (په دنيا کې نو فرمائي ﷲχ چې) نه دي داسې (چې ته بېرته دنيا ته وګر ځېدی شي ايمان او صالح عمل ته) بېشکه دغه د رجعت خبره داسې چټي (بېکاره) خبره ده چې دی ويونکی د هغې دی او په مخ کې د دوی دی برزخ (پرده د قبر ده چې ئې نه پريږدی رجوع ته) تر هغې ورځې پورې چې بيا ژوندي راپاڅولی کيږي .

په پورتنيو آيتونو کې ﷲχد هغه کسانو حال موږ ته بيان کړو چې په دنيا کې په خپل دنياوي مزو کې آخته وو چې هغوی ته مرګ راشي او د خپل بد عاقبت سره مخ شي نو ﷲχ ته به زاری کوي چې بېرته يې دنيا ته ستون کړي د څه لپاره؟ ددې

[1] سورة المؤمنون

لپاره نه چې په دنيا کې نورې مزې وکوي بلکه ددې لپاره چې نېک عمل وکوي او هغه څه چې ده په دنيا کې پرېښي دي په هغې کې بېرته نېک اعمال وکوي لکن دوی به بېرته را وګرځول شي؟ نه هېڅکله نه اوس هغه وخت ختم شو دا خبره هسې د دوی د خولې خبره ده چې ده ته هېڅ فايده نه کوي او نه کېدونکی عمل دی او نه به پدې خبره څه ډول عمل وشي .

## ځينې يې په خپل ژوند کې څه مهلت غواړي

له الله χ نه غواړي چې دوی ته لږ نور وخت که ورکړل شي او مرګ يې لږ وروسته شي د دوی د حالت په اړه الله χ فرمايي :

وَأَنْفِقُوا مِنْ مَا رَزَقْنَاكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلاَ أَخَّرْتَنِي إِلَى أَجَلٍ قَرِيبٍ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُنْ مِنَ الصَّالِحِينَ (10) وَلَنْ يُوخِّرَ الله نَفْسًا إِذَا جَاءَ أَجَلُهَا وَالله خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ(11) .[1]

ترجمه : او نفقه کړئ – ولګوئ تاسې له هغو مالونو څخه چې درکړي مو دي تاسې ته پخوا له هغه چې راشي يو ستاسې ته (اسباب) د مرګ (او پريوځي له مبرات او خيرات) نو وبه وائي ای ربه ځما ولې دې وروستی نه کړ ما لره (يعنی څه به وشي که تاخير کړې موت) تر اجل نيتې نژدې پورې چې صدقه خيرات وکړم زه او شم زه له صالحانو نېکانو څخه (په موندلو د مافات سره نو فرمائي الله χ) او له سره به نه وروستی کوي الله χ هېڅ نفس لره (له مرګه) کله چې راشي نېټه ئې

[1] سورة المنافقون

او اللهχ ښه خبردار دی په هغه څه (ښه او بد)چې کوئ ئې تاسې (نو جزا به پری درکړی) .

## ځینې به یې انکار کوي

یوه ډله به له بدبختانو څخه داسې خلک وي چې هغوی به دا نه مني چې دوی کوم بد کار کړی دی اللهχد هغوی د حالت په اړه فرمایي :

الَّذِينَ تَتَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ فَأَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِنْ سُوءٍ بَلَى إِنَّ اللهَ عَلِيمٌ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ (28) فَادْخُلُوا أَبْوَابَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ(29) .[1]

ترجمه : هغه (کافران) چې قبضوي (ارواح د) دوی ملائکې په دې حال کې چې ظلم کوونکي دي دوی په نفسونو ځانونو خپلو (په کفر سره) نو وړاندې به کړي روغه (اطاعت او وبه وائي) نه وو موږه چې عمل به مو کاوه د هېڅ قسم بدي (نو وبه فرمائي اللهχ ولې مو نه کاوه درواغ مه وایئ) بلکه کاوه تاسې معصیت بېشکه چې الله ښه عالم دی په هغه څه چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې) (نو وبه ویلی شي دغو طالمانو ته) چې ننوځئ اوس تاسې په دروازو د دوزخ کې چې همېشه اوسئ په هغه کې ، نو خامخا بد ځای د هستو ګنې د متکبرانو (دوزخ دی)

## ځینې یې په ځانکدن کې توبه وباسي

یوه ډله هغه بدبخت خلک وي چې په ژوند کې په خپلو مزو کې غرق وي او د اللهχ دین ته یې پام نه وي خو چې کله یې ځانکدن شروع شي نو اللهχ ته به

[1] سورة النحل

رجوع وكوي او هغه ته به په توبه شي اللهχ د هغوی په اړه فرمايي :

وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّى إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْآَنَ وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا .[1]

ترجمه : او نشته (وعده د قبول د) توبې له پاره د هغو کسانو چې کوي دوی ګناهونه تر هغه پورې چې راحاضر شی يو د دوی ته (اسباب د) مرګ نو وائي چې بېشکه ما توبه ويسته اوس او نه (قبلېدی شي توبه) د پاره د هغو کسانو چې دوی مړه شي حال دا چې دوی کافران وي ، دغه کسان (چې د کفر په حالت کې مری ، په عين غرغره کې توبه کوی) تيار کړی دی موږ دوی ته عذاب دردناک .

ځينې به وائي مونږ مجبور وو

په بد بختانو کې به ځينې داسې خلک وي چې هغوی کله سخت حالت ويني نو داسې به نه وايي چې په خپل ژوند کې د اللهχ له عبادت او اطاعت نه په مخ اړولو کې زه ملامت وم بلکه وايي به زه مجبور وم وس مې نه رسېدو نو څه مې کړي وای اللهχ د هغوی د حالت په اړه فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنْفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنْتُمْ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ الله وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا فَأُولَئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَسَاءَتْ مَصِيرًا.[2]

---

[1] سورة النساء آية ١٨
[2] سورة النساء آية ٩٧

ترجمه : بېشکه هغه کسان چې وفات کړي وي دوی لره ملائکو (د مرگ) په داسې حال کې چې وي دوی ظلم کوونکي په ځانونو خپلو وايي ورته (ملائکې) په کوم حال کې وئ تاسې (په خپلو ديني چارو کې ؟) وائي دوی چې وو موږ ضعيفان کړل شوي په ځمکه کې (د کفارو په لاس بيا ملائکې ورته) وائي چې آيا نه وه ځمکه د اللهχ ارته پس هجرت به کړی وتاسې په دې(ځمکه کې) ، نو دا (تارکان د هجرت) ځای د دوی دوزخ دی . او ناکاره ځای د ورتلو دی (دا دوزخ).

## ځينې به يې اعتراف کوي

په بدبختانو کې به يوه ډله خلک داسې هم وي چې د ځانکدن په وخت کې به هغوی فکر وکوي چې اوس د رښتيا خبرو وخت دی او په رښتيا به شروع شي او په خپلو گناهونو به اعتراف وکوي پدې گمان چې کېدای شي دا رښتيا او دا په خپلو گناهونو باندې اعتراف مو په ښه راشي اللهχد هغوی د حالت په اړه فرمايي :

**حَتَّى إِذَا جَاءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ قَالُوا أَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللهِ قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا وَشَهِدُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَنَّهُمْ كَانُوا كَافِرِينَ.** [1]

ترجمه : کله چې راشي دوی ته رسولان زمونږ (ملک الموت او اعوان ئې) حال دا چې قبضوي دوی (ارواح د) هغوی وائي (دا ملائک دې کفارو ته د ملامتي په توگه (طريقه)، چېرته دي هغه (معبودان)چې وئ تاسې چې بلل به مو (عبادت به مو کاوه د هغوی) غير له اللهχ (چې اوس دفع کړی عذاب له تاسې)؟، نو وبه وائي دغه (کافران) ورک شول له موږ (او هېڅ نفعه مو ترې ونه

[1] **سورة الاعراف آية ٣٧**

مونده) او شاهدي به وركړي دوى پر نفسونو (ځانونو) خپلو باندې چې بېشكه دوى وو كافران (په دنيا كې).

# پـنـځـلـسم حقـيقـت

دنـيـا تـه انـسـان ددې لـپـاره نـه دى راغلى چې دلـتـه ژونـد وکـوي او د همېشه لـپـاره پـاتـې شي بـلـکـه دلـتـه انـسـان د امـتحـان لـپـاره راغلـى دى مـثـال يـې د هغـه امـتحـانـي دورې دى چې شاګرد ور نـنـوزي او د هغـه نـتـيـجه بـيـا وروسته شاګـرد تـه اعلانـيـږي داسې د دنـيـا ژونـد يـو امـتحـان دى او ددې امـتحـان نـتـيـجه بـه پـه آخرت کـې انـسـان تـه پـه لاس ورځـي او کـلـه چې د ژونـد آخري نـتـيـجه اعلان شي نـو بـيـا بـه لـه هېچـا سره هېڅ ډول وخت نـه وي چې يـا پـکـې څه کـار وکـوي او يـا پـه خپلـه نـتـيـجه کـې بـدلـون راولـي اللهχ فـرمـايـي :

تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ*الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلاً وَهُوَ الْعَزِيزُ الْغَفُورُ . [1]

تـرجمـه :ډيـر بـرکـت کـړى هغـه (اللهχ) چې پـه لاس (بـلاکـيـف) د ده کـې دى مـلـک سلطـنـت او هم دغـه (اللهχ) پـر هر څيـز بـانـدې (چې اراده وفـرمـائـى) ښه قـادر دى . هغـه (اللهχ) چې پـيـدا کـړي ئـې دى مـرګ او ژونـدون لـپـاره د دې چې وازمـوئـي تـاسې چې کـوم يـو لـه تـاسې ډيـر ښه دى د عمل لـه مخې (چې درکـړى تـاسو تـه جزاء د اعمـالـو) او هم دغـه (اللهχ) ښه غـالـب قـوي دى ډيـر مغفـرت کـوونـکـى دى .

او ددې امـتحـان پـه اړه اللهχ بـار بـار مـوږ تـه پـه قـرآن کـريـم کـې او رسول اللهγ پـه احـاديـثـو کـې را يـادوي تـرڅـو ورڅخه غـافـل نـه شو او سمې لارې تـه هر وخت مـتـوجه شو او پـه يـاد مـو وي چې مـوږ دنـيـا

[1] سورة الـملک آيـة ۱، ۲

ته د لوی مقصد لپاره راغلي يو او عبث نه يو پيدا شوي الله χ فرمايي :

**أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثاً وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لا تُرْجَعُون* فَتَعَالَى الله الْمَلِكُ الْحَقُّ لا إِلَهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ .** [1]

ترجمه: آيا پس گمان کوئ تاسې داسی چې بېشکه خبره دا ده چې پيدا کړي مويئ تاسې عبث (دلوبو دپاره) او (داسې گمان کوئ چې) بېشکه تاسې موږ ته نه به راوستلی کيږئ (حساب او کتاب ته). پس ډير پورته لوی لوړ دی الله χ (له عبثياتو او نورو عيوبو چې) مطلق باچا حق دی نشته هېڅوک لائق د عبادت په رښتيا مگر خو هم دی (يواځی)چې رب مالک د عرش کريم عزت ناک دی (چې رحمت تری نازليږی)

## شپاړسم حقيقت

له مرگ نه وروسته چې کوم حالت په انسان راشي هغه به همېشه وي او په دنيا کې هېڅ حالت له انسان سره د ډېر وخت لپاره نه پاتې کيږي که خوشحالي وي ، که غم وي ، که صحت وي ، که ښائست ، که مرتبه او عزت وي هرشی دلته موقت وي د لږ وخت لپاره انسان ورته خوشحال وي او د ډېر وخت لپاره بيا پسې خفه وي ددې امله هغه کسان بد بخت وي چې له دنيا سره خپل زړه ولگوي او داسې ورته خوشحال شي لکه دا چې دده د همېشه اوسېدلو ځای وي او اکثر په دنيا کې داسې وي چې يو نعمت انسان ته رسيږي له بل نعمت څخه محروم کيږي د مثال په ډول که مال پيدا کوي نو اکثر له صحت او يا له ځواني څخه محروم شي ، او چې بل ښه نعمت لاس ته راوړې نو اکثر انسان پکې له خپل مال نه تېر شي نو مال

[1] سورة المؤمنون آية ١١٥، ١١٦

ورکړي او کوم نعمت ځان ته حاصل کړي او له مرګه وروسته داسې نه وي چې يو ځل اللهχ چا ته جنت ورکړو بيا به دی په هغه کې همېشه وي نه يې څوک ترېنه وباسي او نه څوک ترېنه په بدل کې کوم شی غواړي ددې امله خو اللهχ دنيا ته هسې د لهو شی ويلي دي او فرمايي : **اعْلَمُوا أَنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَزِينَةٌ وَتَفَاخُرٌ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلادِ كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرّاً ثُمَّ يَكُونُ حُطَاماً .** [1]

ترجمه : پوه شئ تاسې (ای تشې دنيا خوښونکيو) چې بېشکه دغه ژوندون لږ خسيس خوشې بې فائدې لوبې او بېکاره عبث مشغولتيا او زينت ښائست او فخر لوئي کول دي په منځ ستاسې کې يو په بل باندې او زيادت (او ډير والی) دی په اموالو او (ډير والی دی) په اولاد کې (ستاسې يو په بل باندې دا ژوندون لږ خسيس په فنا کېدلو کې) په مثل (د نباتاتو) د باران دی (چې پر تيزې ځمکې باندې اوري) ښه ښکاري ناشکرانو کرونکو لره زرغونه د دغه (باران) بيا وچې شی (دا ګيا) نو پس وبه وينې (ای کتونکيه) هغه (زرغونه) زيړ شوي (پس له شينوالی د هغه) بيا شي هغه (وچ واښه)

---

[1] سورة الحديد آية ٢٠

# اولسم حقیقت

مرګ داسې یو شی دی چې انسان له هغه نه وروسته هېڅ نشي کولی او یوازې د هغه څه نتیجې ته به ناست وي چې په دنیا کې یې کړي وي نو هوښیار انسان هغه دی چې په دنیا کې داسې څه وکوي چې په آخرت کې ورته په کار شي او انسان باید هر وخت په دنیا کې له ځان سره حساب وکوي هغه څوک چې په دنیا کې هر وخت له ځان سره حساب کوي په هغه باندې د آخرت حساب اسانیږي او هغه دې خبرې ته متوجه کیږي چې مرګ را روان دی او له هغه نه وروسته بیا زه هېڅ نشم کولی او د ځان سره خلک حساب څنګه کوي؟

انسان چې بیګاه د خوب لپاره تیار شي نو فکر وکوي چې په ټوله ورځ کې مې کوم نېک عمل کړی دی او کوم مې بد عمل کړی دی؟ هغه نېک کارونه چې ده کړي وي نو باید ﷲχ ته شکر وباسي او داسې وګڼي چې دا دده په وس کې نه وه بلکه د ﷲχ توفیق وو او د هغه مرسته وه او که کوم بد عمل یې کړی وي نو د هغه په اړه له ﷲχ نه بښنه وغواړي او چې کله له خوب نه را پاڅیږي نو بیا د نه کولو کلکه اراده وکوي نو که چېرته لدې خوب نه راویښ نه شي په همدې خوب کې او په همدې شپه کې وفات شي نو د توبه کونکو په صف کې به را پاڅیږي او که چېرته ﷲχ ورته ژوند ورکړي نو یو نوی ژوند به شروع کړي .

## آتلسم حقیقت

مرګ انسان د خپل ژوند د نتيجې سره مخامخ کوي کومه چې د هرچا د خپل عمل نتيجه وي او په هغه کې هېڅ کمی او زياتی نه وي او د هېچا نتيجه د بل چا په قسم نه وي او هرڅوک د خپلې نتيجې ذمه وار وي الله χ فرمايي :

أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ اجْتَرَحُوا السَّيِّئَاتِ أَنْ نَجْعَلَهُمْ كَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَوَاءً مَحْيَاهُمْ وَمَمَاتُهُمْ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ . [1]

ترجمه : آيا ګمان کوي هغه کسان چې کړي ئې دي بد کارونه (د شرک او کفر) د دي چې وبه ګرځوو موږ دوی (په آخرت کې) په شان د هغو کسانو چې ايمان ئې راوړی دی او کړي ئې دي ښه (عملونه) برابر (او يو شانې) به وي ژوندون د دوی او مرګ د دوی (بلکه نه دی برابر) بد دي هغه چې حکم کوی دوی (چې دا برابري ده) .

په بل ځای کې الله χ فرمايي :

أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ*مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ . [2]

ترجمه : آيا پس وبه ګرځوو موږ مسلمانان (حکم منونکي) په شان د مجرمانو ګنهګارانو (په خلاصي او ثواب بلکه نه ئې ګرځوو) څه شوي دي تاسې ته څرنګه حکم کوئ تاسې.

## نولسم حقیقت

---

[1] سورة الجاثية آية ٢١

[2] سورة القلم آية ٣٥، ٣٦

اکثر خلک چې له مرګ څخه نفرت کوي د هغوی وجه دا وي چې هغوی د دنیا په جوړولو کې کوښښ کړی دی او آخرت یې هېر کړی دی اوس نه غواړي چې هغه ځای ته ورشي چې دوی هېر کړی وي سلیمان بن عبد الملک له حضرت ابي حازم ρ نه پوښتنه وکوله : دا موږ له مرګ نه ولې داسې کرکه او نفرت کوو؟ هغه ورته وویل : ځکه تاسې دنیا جوړه کړېده او آخرت مو خراب پریښی دی اوس تاسې نه غواړئ چې له ابادي نه خرابې ته ورشئ .

په آخرت کې اللهχ ته چې مخامخ کیږي دوه ډوله کسان وي یو هغه وي چې نېک وي او نېک اعمال یې کړي وي هغه چې له اللهχ سره مخامخ کیږي داسې وي لکه د کور نه چې یو ګران مسافر لاړ شي او ډېر وخت بهر تېر کړي او بېرته خپل اهل ته را ستنیږي او هغه کس چې بد عمل وي هغه چې له اللهχ سره مخامخ کیږي داسې وي لکه د مالک نه تښتېدلی غلام چې ونیول شي او په زور زور سره د خپل سردار مخې ته ور کش کول کیږي اودی چې د خپل عمل له سزا نه ډاریږي نو د مالک سره د مخامخ کېدلو نه ډاریږي د داسې کسانو په اړه اللهχ فرمایي : إِنَّ الَّذِينَ لا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا وَرَضُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّوا بِهَا وَالَّذِينَ هُمْ عَنْ آيَاتِنَا غَافِلُونَ*أُولَئِكَ مَأْوَاهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ .[1]

ترجمه : بېشکه هغه کسان چې نه لري امید د ملاقات زمونږ (او له آخرته منکران دي) او خوښ دي په دې ژوند لږ خسیس او آرام ئې نیولی (راضي شوي دي) په دې (ژوند پورې او له حشره غافلان دي) او هغه کسان چې دوی له آیتونو (دلائلو د قدرت) زمونږ غافلان دی. دغه مذکوره

[1] سورة یونس آیة ۷، ۸

کسان ځای د ورتلو د دوی اور (د دوزخ) دی په سبب د هغه چې وو دوی چې کول به ئې.

## شلم حقیقت

مرګ څوک له ځانه نشي دفع کولی بلکه په دنیا کې داسې هېڅ طاقت نشته چې له چا نه مرګ دفع کړي اللهχ فرمايي :

الَّذِينَ قَالُوا لاخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوا لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا قُلْ فَادْرَءُوا عَنْ أَنْفُسِكُمْ الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ . [1]

ترجمه : هغه (منافقان)چې ويل ئې په (حق د) ورونو خپلو کې حال دا چې دوی (پخپله) ناست وو (له جنګه) که دوی (د اُحد غازيانو) زمونږ خبرې منلې وی نو نه به وو وژل شوی، ووايه (ای محمده ! دوی ته) نو لرې کړئ تاسې له نفسونو (ځانونو) خپلو څخه مرګ که يئ تاسې صادقان (رښتيني په دی خبره چې تاسې سره د مرګ دفعه شته) .

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

قُلْ لَنْ يَنْفَعَكُمْ الْفِرَارُ إِنْ فَرَرْتُمْ مِنْ الْمَوْتِ أَوْ الْقَتْلِ. [2]

ترجمه : ووايه (ای محمده دوی ته)چې له سره به نفعه نه رسوي تاسې ته تېښته که چېرې وتښتئ تاسې له مرګه يا له قتله .

## يو ويشتم حقيقت

[1] سورة آل عمران آية ١٦٨
[2] سورة الاحزاب آية ١٦

مرګ چې چاته پداسې حالت کې راشي چې هغه کافر وي ده ته بيا هيڅ شی فايده نه کوي او که ده په دنيا کې له خلکو سره څومره ښه کړي وي او يا يې نور نېک کارونه کړي وي دا نېک عملونه ده ته هيڅ فايده نه کوي او د مرګ نه وروسته هم دی بيا هيڅ نشي کولی اللهχ فرمايي :

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُوْلَئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ الله وَالْمَلائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ . [1]

ترجمه :بېشکه هغه کسان چې کافران شوی او مړه شوی دی حال دا چې دوی کافران وو (په وخت د مرګ کې) دغه کسان (چې دي) پر دوی باندې دی لعنت د اللهχاو (لعنت) د ملائکو او (لعنت) د خلقو ټولو. (يعنی د ټولو هغو مخلوقاتو چې لعنت ته ئې اهميت ورکاوه شی).

په بل ځای کې اللهχ فرمايي

وَمَنْ يَرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُوْلَئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالاخِرَةِ وَأُوْلَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ. [2]

ترجمه : او هر څوک چې ګرځی له تاسې نه له دينه خپله پس مړ شي حال دا چې دی کافر وي نو دغه کسان ضايع شوي دي (تير) عملونه د دوی په دنيا او آخرت کې او دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دی. هم دوی به په دی (اور)کې تل (همېشه) وی.

په بل ځای کې اللهχ فرمايي :

[1] سورة البقرة آية ١٦١
[2] سورة البقرة آية ٢١٧

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِمْ مِلْءُ الأرض ذَهَبًا وَلَوْ افْتَدَى بِهِ أُوْلَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ. [1]

ترجمه : بېشكه هغه كسان چې كافران شوي دي او مړه شوي دي حال دا چې دوى كافران دي نوله سره به قبول نشي له يوه د دوى څخه په ډك والي د ځمكې سره زر او اګر كه فديه وركړى دى په دغه (ټولو زرو) سره ، دغه كسان (چې په كفر مړه دى) شته دوى لره عذاب دردناک او نشته دوى لره هېڅ مدد ګاران (چې مرسته (مدد) ورسره و كړى).

پدې اړه رسول اللهγ فرمايي :

يُجَاءُ بِالْكَافِرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ لَهُ أَرَأَيْتَ لَوْ كَانَ لَكَ مِلْءُ الأرض ذَهَباً أَكُنْتَ تَفْتَدِي بِهِ فَيَقُولُ نَعَمْ فَيُقَالُ لَهُ قَدْ كُنْتَ سُئِلْتَ مَا هُوَ أَيْسَرُ مِنْ ذَلِكَ. [2]

ترجمه : د قيامت په ورځ به يو كافر راوستلى شي او ورته به وويل شي ستا څه ګمان دى كه دا ټوله دنيا ستا له سرو زروڅخه ډكه واى او اوس درنه غوښتل شوي واى چې د ځان د خلاصولو لپاره يې فديه كړه او دا ټول سره زر وركړه ته به له عذاب نه خلاص شې نو آيا تا به دا كار كړى واى؟ كافر به ورته ووايي : هـــــــو! بيا به ورته وويل شي : په دنيا كې لتا څخه لدې نه د وړوكي شي غوښتنه شوې وه .

## دوه ويشتم حقيقت

[1] سورة آل عمران آية ٩١
[2] صحيح البخاري

چا ته چې مرګ وروسته له دې راشي چې ده له خپلو ګناهونو څخه توبه ویستلې وي نو دا ددې کس لپاره د خوشحالي او ښه قسمت خبره ده او امید دی چې اللهχ به دده ګناهونه ټول ورته وبښي او هغه کسان چې تر هغه وخته یې توبه نه وي ویستلي چې کله یې ځانکدن شي بیا وایي توبه مې ده او یا په هغه وخت کې هم ونه وایي او همداسې د توبې د نشت والي په حالت کې مړ شي نو د هغوی معامله د خطر نه خالي نه ده اللهχ ددې دواړو ډلو په اړه فرمایي :

إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوبُونَ مِنْ قَرِيبٍ فَأُوْلَئِكَ يَتُوبُ اللهُ عَلَيْهِمْ وَكَانَ اللهُ عَلِيمًا حَكِيمًا * وَلَيْسَتْ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّى إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمْ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الانَ وَلا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ أُوْلَئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا. [1]

ترجمه : بېشکه (قبلول د) توبې په اللهχ (د وفاء له مخې ضروري شی) دي دپاره د هغو کسانو چې کوي دوی ناکاره په ناپوهي سره (په دې حال چې په شان د ناپوهانو دی) بیا توبه وباسي دوی په نږدې زمانه کې (له مرګ نه وړاندې) نو دغه کسان رجوع به کوي په رحمت سره اللهχ په دوی باندې ، او دی اللهχ ښه عالم (په پټو او ښکاره وو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي)، او نشته (وعده د قبول د) توبې له پاره د هغو کسانو چې کوي دوی ګناهونه تر هغه پورې چې راحاضر شي یو د دوی ته (اسباب د) مرګ نو وائي چې بېشکه ما توبه ویسته اوس او نه (قبلیدی شي توبه) دپاره د هغو کسانو چې دوی مړه شي حال دا چې دوی کافران وي، دغه

---

[1] سورة النساء آية ١٧، ١٨

کسان (چې د کفر په حالت کې مري، په عين غرغره کې توبه کوی) تيار کړی دی موږ دوی ته عذاب دردناک.

# در ويشتم حقيقت

پـه دنـيـا كې لـه مـرګ نـه وروسـتـه بـېرتـه را ژونـدي كـېدل

پـه قـران كـريـم كې داسې واقـعې هـم ذكـر شـوي دي چې پـه هغې كې پـه دنـيـا كې يـو څـوك يـا يـو شى مړه شـوي وي او بـېرتـه را ژونـدي شـوي وي .

١. د بـنـي اسـرائـيـلـو پـه قـصـه كې كـلـه چې دوى د حضرت مـوسى v سره كـوه طـور تـه لاړل دوى وويـل : مـوږ چې تـرڅـو پـوري اللهχ پـه سـتـرګـو ونـه ويـنـو ايـمـان نـه راوړو بـيـا اللهχ وربـانـدې يـو تـنـدر نـازل كـړو ټـول مـړه شـول بـيـا بـېرتـه ژونـدي شـول اللهχ د هغې واقـعې پـه اړه فـرمـايـي : **وَإِذْ قُلْتُمْ يَا مُوسَى لَنْ نُوومِنَ لَكَ حَتَّى نَرَى الله جَهْرَةً فَأَخَذَتْكُمُ الصَّاعِقَةُ وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ* ثُمَّ بَعَثْنَاكُمْ مِنْ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ.** [1]

تـرجـمـة : (بـنـي اسـرائـيـلـو) دريـاد كـړئ هغـه وخت كـلـه چې تـاسې وويـل اې مـوسى مـونـږ پـه تـا تـر هغـه وختـه پـوري ايـمـان نـه راوړو تـرڅـو مـونـږ الله پـه ښكـاره سره ونـه ويـنـو بـيـا تـاسو تـنـدر ونـيـولـئ او تـاسې كـتـل بـيـا مـونـږ تـاسې لـه مـرګ نـه وروسـتـه بـېرتـه را ژونـدي كـړئ سـتـاسې تـر مـرګ وروسـتـه ښـائـي چې تـاسې شـكـر وبـاسئ.

٢. د غـوا پـه قـصـه كې

كـلـه چې پـه بـنـي اسـرائـيـلـو كې يـو كس ووژل شـو او قـاتـل يـې نـه وو مـعـلـوم او هېڅ لاره يـې د مـعـلـومـولـو نـه وه نـو اللهχ بـنـي اسـرائـيـلـو تـه وويـل

[1] سورة البقرة آية ٥٥ او ٥٦

: یوه غوا حلاله کړئ د هغې یوه ټوټه په مړي باندې ووهئ هغه به ژوندی شي او خپل قاتل به وښيي بیا دوی همداسې وکول هغه مړی را ژوندی شو خپل قاتلان يې یاد کړل او بیرته مړ شو .

۳. الذين خرجوا من ديارهم

اللهχد څه کسانو په اړه فرمايي : **أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ فَقَالَ لَهُمُ الله مُوتُوا ثُمَّ أَحْيَاهُمْ إِنَّ الله لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لا يَشْكُرُونَ *وَقَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ الله وَاعْلَمُواْ أَنَّ الله سَمِيعٌ عَلِيمٌ * مَّن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ الله قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً وَالله يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ** . [1]

ترجمه : آیا نه ده لیدلی تا (یعنی نه دی رسیدلی علم ستا ای عبرت اخیستونکیه ! قصې د) هغو کسانو ته چې وتلي وو له کورونو خپلو ته حال دا چې دوی په زر ګونو و له ویری د مرګه پس وفرمایل دوی ته الله چې مړه شئ (پس مړه شول) بیائې ژوندي کړل دوی بېشکه الله خامخا څېښتن (خاوند) د فضل (مهربانی) دی په خلقو باندې ولیکن ډېر د خلقو شکر نه باسی. (لکه چې ښایی او پند ترې نه اخلی). او جنګ کوئ (ای مؤمنانو !) په لاره د الله کې (د دین د ترقی له پاره) او پوه شئ تاسې ! چې بېشکه الله ښه اوریدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم (په ټولو احوالو) دی .
څوک دی هغه سړی چې قرض ورکوی اللهχ لره قرض نیک (د زړه له اخلاصه د اللهχ په لاره کې په صرفولو سره) نو زیات به کړي اللهχ (ثواب د) قرض ده لره په زیاتوالي ډیر او اللهχ تنګوی (رزق) او فراخوی

[1] سورة البقرة آية ۲۴۳ تر ۲۴۵

(رزق) او هم (خاص) بیا به ده ته بیولی کیږئ !
(د اعمالو د جزا له پاره) .

ددې کسانو په اړه حضرت عبد الله ابن عباس η
فرمايي : دا څلور زره کسان وو او په بل روایت
کې همدی مبارک η فرمايي آته زره کسان وو
امام ابو صالح ρ فرمايي نه زره کسان وو ، د
عبد الله بن عباس η په بل قول کې څلوېښت زره
کسان وو ، حضرت وهب بن منبه ρ فرمايي څو
دېرش زره کسان وو ابن ابي حاتم ρ د ابن عباس
η نه روایت کوي د یو کلي خلک وو چې ذَاوَرْدَان
یې ورته ویل په علاقه کې وبا ګډه شوه دا خلک
چې د مختلفو روایاتو له مخې یې حساب مخکې تېر
شو چې هرڅو کسان وو دا ټول له خپل کلي نه
ووتل ددې امله چې دوی ډارېدل چې د وبا په
بیماري باندې مړه نه شي او داسې یو ځای ته یې
تلل غوښتل چې هلته وبا نه وي چې یو ځای ته
ورسېدل الله χ وربانديې امر وکولو چې موتوا (مړه
شئ) او ټول خلک دا چې څلور زره ، که آته زره
، که نه زره ، که څو دېرش زره او که څلوېښت
زره وو ځای په ځای مړه شول او مړه داسې شول
چې دوی په یوه خوړ کې وو چې دا خوړ وربانديې
ډک وو الله χ ورته دوه فرښتې را ولېږلې یوه د خوړ
په یو طرف کې او بله په بل طرف کې ورته و
درېده الله χ هغوی ته وویل چې په دوی باندې چغه
وکوئ هغوی وربانديې په یو ځای چغه ووهله او
ټول خلک داسې مړه شول لکه یو انسان چې مړ
کیږي بیا خلک راغلل دېوال یې ترې تاو کړو او
هماغلته پراته وو بدنونه یې خراب شول او ډېر
وخت وربانديې تېر شو په یو وخت کې یو نبي په
دغه لاره تېرېدلو چې حضرت حزقیل ν نوم یې وو
چې ویې لیدل دومره ډېر خلک مړه دي نو یې د

اللهχنه وغوښتل چې دا خلک دده په لاس باندې ژوندي کړي اللهχ چې د خپل نبي دعاء نه رد کوي نو دغه نبي ته يې دا څو کلمې ور وښودلې نبي چې هغه کلمې وويلې هغوی ټول را ژوندي شول نبي ورته وويل :

أَيَّتُهَا الْعِظَام الْبَالِيَة إِنَّ الله يَأْمُرك أَنْ تَجْتَمِعِي

ترجمه : ای زړو هډوکو اللهχ تاسې امر کوي چې سره را ټول شئ

ددې خبرې سره د هر بدن هډوکي د خپلو نورو هډوکو سره را ټول شول بيا يې ورته وويل :

أَيَّتهَا الْعِظَام إِنَّ الله يَأْمُرك بِأَنْ تَكْتَسِي لَحْمًا وَعَصَبًا وَجِلْدًا

ترجمه : ای هډوکو اللهχ تاسې ته امر کوي چې تاسې غوښه پله او پوستکي واغوندئ .

لدې خبرې سره په ټولو هډوکو باندې غوښه را شنه شوه او څرمن وربانديې وختله او ټول بدنونه يې پوره شوله بيا يې ورته وويل :

أَيَّتهَا الْأَرْوَاح إِنَّ الله يَأْمُرك أَنْ تَرْجِع كُلّ رُوح إِلَى الْجَسَد الَّذِي كَانَتْ تَعْمُرهُ .

ترجمه : ای روحونو اللهχ تاسې ته امر کوي چې را وګرځئ هر روح د په هغه بدن کې ننوزي چې دی وربانداباد وو .

لدې سره ټول رحونه راغلل او په بدنونو کې ننوتل خلک را پورته شول د اللهχ حمد او ثناء يې وويله د دوی په را ژوندي کولو کې د ټولو

خلکو لپاره لوی عبرت وو ددې امله خو اللهχ هم فرمایي چې اللهχ د فضل خاوند دی په خلکو باندې چې هر وخت د دوی د عبرت لپاره آیتونه را لیږي او دوی ته نښې د قدرت ور ښیي .

٤. الذي مر على قرية و هى خاوية

اللهχ یوه واقعه موږ ته فرمایي : أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَى قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا قَالَ أَنَّىَ يُحْيِي هَذِهِ الله بَعْدَ مَوْتِهَا فَأَمَاتَهُ الله مِئَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ قَالَ كَمْ لَبِثْتَ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ قَالَ بَل لَّبِثْتَ مِئَةَ عَامٍ فَانظُرْ إِلَى طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ وَانظُرْ إِلَى حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ وَانظُرْ إِلَى العِظَامِ كَيْفَ نُنشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ الله عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (259) .[1]

ترجمه : یا (آیا ستا علم نه دی رسیدلی قصې د) هغه سړي (عزیر) ته چې تېر شو په یوې قریې او هغه (قریه) پریوتلي وو (دیوالونه ئی) پر بامو د دوی باندې (نو عزیر) وویل څرنګه به (بیا ودانه او) ژوندی کړي اللهχ دا (قریه یا ئې خلق) وروسته له (ورانېدو او) مړ کېدو (د اهل) د هغې؟ نو مړ کړ دی اللهχ (او مړ ئې پریښود) سل کاله بیا ئې پورته (ژوندی) کړ دی. وویل (الله عزیر ته چې) (څومره ځنډ (تاخیر) کړی دی تا (دلته) ،) وویل (عزیر) (ځنډ (تاخیر) مې کړی دی یوه ورځ یا یوه برخه د ورځې) ، وویل (اللهχ داسې نه ده لکه چې ته وائې) بلکه ځنډ (تاخیر) کړی دی تا (دلته) سل کاله نو وګوره خوړو خپلو ته (چې انځر او انګور دي) او (شیانو د) څښلو خپلو ته (چې شوده او عصیر دي)

[1] سورة البقرة

چې هېڅ نه دي خراب شوي (سره له تيريدلو د سلو كلونو) او وګوره خره ته دې (چې هډو كې ئې څرنګه تک سپين ځليږي) او دپاره د دی چې موږ وګرځوو تا دليل (دقدرت) له پاره د خلقو (په بيا ژوندي كيدو سره) او وګوره طرف د هډوكو (د خره خپل) ته چې څرنګه راخوځوو (موږ) هغه بيا ور آغوندو هغوی ته غوښه نو كله چې ورښكاره شو ده ته (دا حال په مشاهده سره نو) وويل (عزير چې اوس) پوهيږم (په مشاهده سره هم) چې بېشكه اللهχ په هر شي باندې (چې اراده و فرمائي) ښه قادر دی .

بني اسرائيل په مختلفو قسمونو باندې تقسيم شوي وو ځينې يې داسې وو چې د وخت د پيغمبر متابعت يې كاوه او په سمه توګه اسلام يې قبلولو او يوه ډله پكې داسې خلک وو چې هغوی به د هغه وخت اسماني دين نه منلو او په اسماني كتاب كې به يې تحريف كاوه او هغه څوک چې صحيح مسلمانان به وو په هغوی به يې هم كوښښ كاوه چې دا تحريف شوی كتاب وګوري او له خپل ديانت څخه منحرف شي او ډېر پكې داسې وو چې د وخت په انبياوو پسې به يې را اخيستې وه ا و هغوی به يې قتل كول نو كله چې په دوی كې فسادونه زيات شول او د انبياوو قتلونه يې زيات كړل او دوه محترم انبياء حضرت سيدنا زكريا ν او حضرت يحی ν يې په شهادت ورسول اللهχ په دوی باندې يو حاكم مسلط كړو چې بخت نصر يې ورته ويل دا د عراق له خوا نه د لښكر سره بيت المقدس ته راغلو او د بني اسرائيلو سره يې جنګ وكولو ډېر يې ترې مړه كړل او ډېر يې ژوندي ترينه ونيول او په كم تعداد كې ترينه و تښتېدل بخت نصر بنديان له ځان سره بابل ښار ته بوتلل چې پدې ډله كې ځينې علماء هم وو چې هغوی په رښتيا سره د اسماني دين متابعت كاوه او له بيت المقدس نه د وتلو نه وړاندې يې

تورات چېرته خښ کړو چې يوازې دی ته (يو شو علماوو ته) يې ځای معلوم وو او په همدې ډله کې حضرت عزير بن شرخياv هم وو چې يو څه وخت وروسته بيت المقدس ته را ستون شو خو ويې ليدو چې بيت المقدس ډېر په خراب حالت کې وو او کوم کورونه چې پاتې وو خلک ترېنه تللي وو هغه کورونه د وخت په تېرېدلو سره وران شوي وو او هر ځای د مړيو هډوکي او د بدن برخې ښکاره کېدلې په حيرانتيا سره په ښار کې روان وو او خر يې په ځان پسې ور کش کولو کله چې باغونو ته ورسېدو ويې ليدل چې باغونه په تازه ميوو باندې ډک دي نو په زړه کې يې سم بل قسم احساس وکولو چې دا مېوې وګوره پخې دي او باغونه ښه تازه دي لکن خلک نشته چې پالنه يې وکوي او استعمال يې کړي نو په حيرانتيا سره يې يوې بلې خوا ته کتل او له ځان سره يې وويل : **أَنَّىَ يُحْيِي هَذِهِ الله بَعْدَ مَوْتِهَا** (څرنګه به (بيا ودانه او) ژوندۍ کړي اللهχ دا (قريه يا ئې خلق) وروسته له (ورانېدو او) مړ کېدو (د اهل) د هغې؟ بيا لاړو له هغه ونو څخه يې انګور ، انځر وخوړل او يو شی چې ورسره وو هغه يې ترېنه ډک کړل بيا يې په يوه لوښي کې د انګورو نه اوبه وويستې هغه يې وڅښلې او تر يوه ونه لاندې سيوري ته کېناستلو يو څو لحظې ژوندی وو بس اللهχ په همدې ځای باندې مړ کړو له مرګ نه وروسته يې د خلکو ، حيواناتو او مارغانو له سترګو نه پټ کړو .

د عزير v ددې مرګ نه اويا کاله وروسته اللهχ يوه فرښته د فارس يو بادشاه ته چې لوسک نومېدو ور ولېږله او هغې ته يې وويل چې ته خپل خلک درسره بوزه او د بيت المقدس شاوخوا اباد کړئ او هلته ژوند وکوئ لوسک بادشاه په خپلو خلکو کې لسګونو زرګونو خلکو ته وويل چې څو هلته په بيت المقدس کې ابادي کوو هلته لاړل ښار يې له

سر نه په ښکلې نقشه بانديې اباد کړو او په بني اسرائيلو کې چې کوم کسان ژوندي پاتې وو هغوی هم بېرته ورغلل په دېرشو کلونو کې يې د بيت المقدس ښار له مخکې نه ښه جوړ کړو چې د عزير ددې وفات سل کاله پوره شول نو هغه يې په خپل قدرت را ژوندی کړو وفات کړی يې د سهار په وخت کې وو او را ژوندی يې د مازيګر په وخت کې کړو اول يې دده زړه ژوندی کړو بيا يې سترګې ژوندۍ کړې ترڅو هغه په خپلو سترګو ووينې او دده د نور بدن جوړښت ده په خپلو سترګو وليد چې له سر نه بېرته څنګه جوړ شو بيا اللهχ يوه مبارکه فرښته ورته را ولېږله پوښتنه يې ترې وکوله څومره وخت دلته پاتې شوې؟ ده چې شاوخوا وکتل ويې ويل : يوه ورځ چې بيا يې وکتل چې ا وس خو هم لا لمر نه دی غورځېدلی نو بيا يې وويل : بلکه د ورځې څه برخه بيا فرښتې ورته وويل : تا دلته سل کاله تېر کړل اوس د هغه خوراک ته وګوره هغه مېوه چې ده شکولې وه داسې وه لکه ده چې اوس شکولې وي او هغه د انګورو شربت چې له ده سره په لوښې کې پاتې وو نه بد بويه شوی وو او نه خراب شوی بلکه هماغه شان تازه پروت وو ده خر په ونه پورې تړلی وو فرښتې ورته وويل : اوس د خره ته وګوره هغه مړ وو او هډوکې يې سپين هرې خوا ته خواره شوي وو او زاړه شوي وو پدې وخت کې حضرت عزير ν د اسمان له لوري د فرښتې اواز واورېدو چې ويل يې : ای زړو هډوکو د اللهχپه امر سره جمع شئ هغه هډوکي سره را ټول شول او ټول اندامونه يې سره يو ځای شول په هډوکو بانديې غوښه شنه شوه او هغه پکې پټ شول څرمن ور بانديې وغوړول شوه او له څرمنې نه وېښته را ووتل دا ټول کارونه د حضرت عزير ν تر سترګو لاندې وشول بيا فرښته راغله په هغه کې يې روح واچولو خر پاڅېدو حضرت عزير ν زر اللهχته په سجده بانديې پرېوت او ويې

ویل : أَعْلَمُ أَنَّ الله عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (زه پدې پوهېږم چې اللهχپه هرڅه باندې قادر دی)

ددې قصې په اړوند روایت شوی دی چې عزیرν کله پدې مرګ باندې وفات کېدو نو د څلویښتو کلونو وو تکړه انسان وو او تور ویښته یې وو او مېرمن یې حامله وه چې کله اللهχ را ژوندی کړو نو په هماغه شکل کې وو په خپل خره باندې سپور شو خپلې محلې ته راغلو هېچا نه پېژندلو ځکه دده له وخت نه سل کاله تېر شوي وو هغه نسل ټول ختم شوی وو او اوس نور خلک دلته پیدا شوي وو دده خپل کور هم نه پېژندلو د کور مخې ته یې یوه بوډۍ ړنده ښځه ناسته وه دا دده په وخت کې د شلو کلونو وه او د دوی د کور خدمت به یې کاوه ده تري پوښتنه وکوله : هغه د عزیر کور دادی؟ هغې ورته وویل : هو او بیا یې سخت وژړل او په ژړا کې یې وویل : عزیر خو په لسګونو کاله وړاندې لدې ځای نه تللی دی او خلکو هېر کړی دی او ما بیا هېڅوک نه دي لیدلي چې د هغه پوښتنه یې کړې وي مګر تا اوس وکوله ده مبارک ν ورته وویل : زه عزیر یم اللهχ سل کاله مړ کړم او اوس یې را ژوندی کړم هغه سمه حیرانه شوه او ورته یې وویل : عزیر خو یو نېک انسان وو او دعاء یې قبلېده چې کوم بیمار ته به یې دعاء وکوله هغه به جوړ شو زما لپاره دعاء وکوه چې ځان مې ښه شي او نظر مې کار وکوي حضرت عزیر ν ورته دعاء وکوله هغه جوړه روغه شوه او پاڅېده او ښه تېز نظر یې شو ویې ویل : زه ددې ګواهي ورکوم چې ته رښتیا عزیر یې .

بیا یې خلکو ته ور ووستلو چې دده لمسیان وو څوک پکې اتیا کلن وو څوک پکې لدې نه هم زیات وو ویښتان یې سپین وو څوک پکې په ملا ښکته شوي

وو او څوک پکې زيات کمزوري وو ورته يې وويل : دا هغه عزير دی چې لتاسې نه سل کاله ورک وو اوس اللهχ بېرته تاسې ته را وگرځولو ځوان سړی دی او لکه د ځوانانو داسې رفتار کوي او تکړه دی هېچا نه منله خو زوی يې ورته راغلو ورته يې وويل : ماته مې مور ويلي وو چې ستا د پلار د اوږو په مينځ کې په شا کې يوه توره نښه وه حضرت عزيرν چې شا ورته ښکاره کړه هغه تور خال او نښه يې پکې وليده خو بيا يې هم پوره يقين نه راتلو يو ډېر سپين ږيری کس را پاڅېدو ورته يې وويل زمونږ نيکونو موږ ته قصه کړېده چې کله بخت نصر په بيت المقدس باندې حمله وکوله تورات يې وسوزولو او په هغوی کې ډېر کم کسان داسې پاتې شول چې د هغه زباني ياد وو يو پکې عزير وو که ته چېرته عزير وې نو موږ ته د تورات تلاوت وکوه ده دا خلک له ځان سره کړل او هغه ځای ته يې ور وستل چېرته چې دوی د تورات نسخه خښه کړې وه هغه يې را وويستله په دوو ټوټو کې تاو کړل شوې وه يو څه ورقې يې ترې خرابې شوې وې بيا تر يوه ونه لاندې ورته کېناستل دوی نسخې ته کتل ده ورته تلاوت شروع کړو يو يو حرف يې ورته تلاوت کړو او يوه کلمه او يو آيت يې هم پکې فرق ونه کولو .

نو بيا ورسره دوی په مينه ستړې مشي وکوله او د هغه نه يې د تبرک حاصلولو کوښښ کاوه لکن بني اسرائيل چې په فساد کې مشهور دي نو دوی په هدايت کې زيات نه شول بلکه سر چپه يې وويل چې **عزير ابن الله** (عزير د اللهχزوی دی) نعوذ با لله.

٥. د حضرت ابراهيم ν قصه

حضرت ابراهيم ν اللهχ ته وويل : ماته را وښيه ته مړي څنگه ژوندي کوې؟ اللهχ ورته وويل : ولې ستا

پرې يقين نشته؟ حضرت ابراهيم ν ورته وويل : يقين مې وربانډې شته لکن چې زړه مې مطمئن شي

بيا الله χ ورته وويل : څلور مارغان واخله هغه مړه کړه او غوښې يې سره شريکې کړه بيا يې ځان ته شاوخوا په نېږدې غرونو بانډې لږ لږ کيږده او بيا يې ځان ته در وغواړه کله چې حضرت

ابراهيم ν همداسې وکول او مارغان يې ځان ته ور وغوښتل د هر مارغه غوښې به په هوا کې له

نورو غوښو سره يو ځای شوې او حضرت ابراهيم ν ته به د مکمل مارغه په شکل کې راغلو .

دا پنځه واقعې دي چې قرآن موږ ته قصه کړېده چې يو څوک له مرګ نه وروسته په دنيا کې ژوندي

شوي وو همدارنګه د حضرت عيسی ν معجزه وه چې هغه به مړي ژوندي کول د اصحاب کهف واقعه هم په قرآن کريم کې ده ما درته دا پنځه دمثال په توګه کېښودې.

# څلور ويشتم حقيقت

له مړي سره قبر ته څه شی ځي ؟

حضرت انس بن مالک η فرمايي : رسول الله γ فرمايل :

**يَتْبَعُ الْمَيِّتَ ثَلاَثَةٌ فَيَرْجِعُ اثْنَانِ، وَيَبْقَى مَعَهُ وَاحِدٌ يَتْبَعُهُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ وَعَمَلُهُ، فَيَرْجِعُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ وَيَبْقَى عَمَلُهُ** .[1]

ترجمه : له مړي سره درې شيان ځي دوه ترېنه را ګرځي او يو ورسره پاتې کيږئ دده اهل او دده

[1] **رواه البخاري ومسلم**

مال بېرته ترېنه را ګرځي او د هغه عمل ورسره پاتې کيږي .

او پدې دريو کې دا دوه اکثر له مړي سره ځي او کله کله داسې کس هم وي چې تر قبره ونه رسيږي او داسې مړي هم وي چې قبر يې بالکل په قسمت کې نه وي او کله يو څوک پداسې ځای کې مړشي چې هلته دده اهل بالکل څوک نه وي او پردي خلک يې تجهيز او تکفين وکوي لکن عمل په هر صورت کې د انسان ملګری وي ددې امله به ځينې علماوو ژړل او ويل به يې چې کله انسان په قبر کې کېښودل شي دده عمل يا په يو ښکلي شکل کې ورته راشي او ده ته ووايي چې زه ستا نېک عمل يم او زه اوس دلته ستا سره ملګری يم او ته د هېڅ شي نه اوس مه ډارېږه او يا ورته په بد شکل کې راشي او ده ته وايي چې اوس دې دلته نه خپلوان او نه اهل شته زه به دلته لتا سره وم تا په دنيا کې ورځې عبث تېرې کړې او ددې ځای لپاره د ښه ملګري د پيدا کولو هېڅ کوښښ ونه کولو .

# پنځه ويشتم حقيقت

مرګ په درې ډوله دی:

## حقيقي مرګ

حقيقي مرګ هغه دی چې له يو بدن څخه روح ووزي او خلک وربانډې خبر شي او د قاضي په وړاندې به دا په ګواهانو ثابتيږي او يا په قوي دليل باندې.

## حکمي مرګ

دا هغه مرګ دی چې په رښتيا د انسان له بدن څخه روح نه وي وتلی لکن قاضي د هغه په مرګ

بانديې فيصله وکوي د مثال په توګه هغه کس چې نعوذ بالله مرتد شي او د مسلمانانو له دار څخه لاړ شي په دار الحرب پورې ځان وتړي او هغوی ته ورشي د امام ابي حنيفه ρ په مذهب کې به قاضي دده پدې عمل بانديې فيصله کوي او حکم به صادروي چې دا کس نور مړ حسابيږي چې کله قاضي دا فيصله وکوله ددې لحظې نه بيا دا کس مړ حسابيږي دلته يې چې هرڅه درلودل هغه به اوس دده نه وي مال به يې په ورثه وو بانديې تقسيم کيږي امام سرخسي ρ ورته دليل ويلی دی ځکه که دا کس اوس د مسلمانانو لاس ته ورشي نو مرګ يې يقيني دی نو چې اوس مسلمانان دده له قتل نه عاجز دي ځکه هغه د دوی په دار کې نه دی نو ځکه يې دده په مرګ بانديې حکم کوي او مال يې تقسيم کوي.

## تقديري مرګ

دا هغه مرګ دی چې موږ صرف يو ژوند هلته فرض کړو او بيا د هغه نه وروسته مرګ فرض کوو د مثال په ډول که چا يوه حامله ښځه په کوم لرګي يا بل شي ووهله او يا يې هغه له کوم ځای نه وغورځوله او پدې سره د هغې ماشوم ضائع شو او ماشوم مړ پيدا شو نو دا وهونکی کس به ددې جنين ديت ورکوي ځکه موږ داسې فرض کوو چې د مور په ګېډه کې ماشوم ژوندی وو او دده په جنايت سره هغه مړ شو بيا مړ را پيدا شو .

# شپږم ويشتم حقيقت

د مرګ نښې

د مرګ لپاره څه نښې دي چې د هغې نه معلوميږي چې دا کس يا نور مړ کيږي اويا مړ شوی دی په خاصه توګه په هغه ځای کې چې هلته د طبي

معايناتو سهولت نه وي د هغه نښو نه موږ معلومولی شو چې دا کس مړ دی فقهاوو ځینې نښې په لاندې توګه ذکر کړي دي :

د زړه درېدل ، نفس قطع کېدل ، اندامونه غوړېدل او فراخه کېدل ، په بدن کې حرکت ختمېدل ، رنګ بدلېدل ، سترګې شخې پاتې کېدل ، سترګې خلاصې پاتې کېدل ، د پوزې کږېدل ، د شونډو سره لرې کېدل ، پوستکی ازادېدل ، په سترګو کې تور والی ورکېدل ، همدارنګه د بدن یخېدل ابن نجم الحنفي ρ فرمایي : ځانکدن هغه حالت دی چې چا ته مرګ را نېږدې شي او ځینې نښې یې دادي : چې پښې یې بې اختیاره خلاصې شي بیا نه درېږي ، پوزه یې کږه شي ، په نارینه کې د خصیتینو څرمن اوږده شي .[1]

امام الخرشي مالکي ρ فرمایي : **وعلامات الموت أربع: انقطاع نفسه، وإحداد بصره، وانفراج شفتيه فلا تنطبقان، وسقوط قدميه فلا تنتصبان** .

ترجمه : د مرګ نښې څلور دي : د نفس قطع کېدل ، دنظر تېزیدل ، د شونډو سره فراخه کېدل بیا یو له بل سره نه لګیږي ، پښې یې غورځېدل بیا نه درېږي (کله چې پروت وي ژوندی کولی شي خپلې پښې ودروي او چې مړ شي هغه بیا نه درېږي) .

امام نووي ρ فرمایي : کله چې روح له بدن څخه وزي بیا ژوند پکې نه وي او نښې یې دادي چې قدمونه یې سره سست شي بیا هغه نه درېږي ، پوزه کږه شي ، د مخ څرمن اوږده شي خو دا نښې چې ښکاره هم شي په مرګ باندې یقین نه فایده کوي کېدای شي په دې کس باندې سکته وي او یا څه بیماري وي او د هغې وجې دده بدن داسې شوی

[1] **البحر الرائق شرح كنز الدقائق**

وي نو (كه د طبي معاينې سهولت نه وي) نو صبر د وكوي د مرګ حكم دې وربانديې زر نه كوي و دې ګوري چې بوی يې بدل شي يا بل څه نښه وربانديې ښكاره شي همدارنګه امام قدامه حنبلي ρ امام غزالي ρ او نورو علماوو دا مشهورې نښې ذكر كړي دي لنډه دا چې ترڅو د مړي په مرګ باندې يقين رانشي د فقهاوو له نظره هغه ژوندی حسابيږي او په مرګ باندې يې فيصله نشي كېدلی ددې امله وروستنيو فقهاوو پدې اړه هم لټون كړی دی چې په صحيح معنی كې مرګ تعريف كړي ترڅو داسې ونشي چې د كوم ژوندي كس په اړه د مرګ فيصله وشي لكه الدكتور محمد سعيد رمضان البوطي چې د مرګ تعريف كړی دی هغه فرمايي :

**أن الموت هو سكون النبض ووقوف حركة القلب وقوفاً تاماً .** [1]

ترجمه : مرګ د نبض ساكن كېدل او د زړه د حركت دريدل دي په مكمله توګه .

همدارنګه دار الإفتاء المصرية په 1979/12/5م كې يوه فتوی صادره كړه چې په هغه كې يې ليكلي وو چې د چا د مرګ په فيصله باندې به تادي نه كيږي او زياته كړې يې وه : **إن الإنسان يعد ميتاً شرعاً، وتترتب آثار الوفاة من تحقق موته كلية، فلا تبقى فيه حياة ما، لأن الموت هو زوال الحياة .**

ترجمه : انسان په شريعت كې مړ حسابيږي او په هغه باندې به د مرګ فيصله كيږي كله چې د هغه مرګ په يقين توګه معلوم شي او په هغه كې هېڅ ډول ژوند پاتې نشي ځكه مرګ وايي د ژوند ختمېدلو ته .

---

[1] **قضايا فقهية معاصرة**

د جامعة الازهر الشريف رئيس لجنة الفتاوى هم ددې خبرې تائيد کړی دی او د مړي د اندامونو د اخستلو او بل چاته د استعمال په اړه يې ويل : **لا يجوز التشريح ونقل الأعضاء إلا بموافقة أهل الميت، على أن يكون ذلك بعد تحقق وفاة الميت بتوقف مخه (أي دماغه) عن أداء وظيفته، لا بتوقف قلبه، لأن القلب قد يتوقف والمخ ما زال قائماً بوظيفته فلا تتحقق الوفاة.** [1]

ترجمه : د مړي نه د هغه د اندامونو اخيستل او بل چاته استعمالېدل نه دي روا مګر په اجازه د اهل د مړي او دا وروسته لدې روا دي چې د مړي مرګ يقيني شي يعني د هغه دماغ خپل کار پرېږدي يوازې د زړه په درېدلو نه ځکه کله کله زړه درېږي لکن بيا هم دماغ په خپله وظيفه باندې لګيا وي او ترڅو چې دماغ کار کوي نو مرګ نه دی راغلی او تردې وخته پوري دا کس مړ نه حسابيږي او د هغه نه د اندامونو نقل نه دی روا .

ددې خبرو په غور سره په نظر کې نيول ددې لپاره ضروري دي ترڅو ژوندی انسان خښ نه کړل شي ځکه کله داسې کيږي چې يو انسان د ډېر وخت لپاره بې خوده شي او بې هوښه شي کله يې د رښتيني مرګ سره فرق نه کيږي. [2]

امام ابن قدامة ρ چې د مرګ نښې ذکر کړي دي بيا يې مخکې فرمايلي دي : که څوک په ناګهاني مرګ باندې مړ شي لکه له کوم حيوان څخه وډار شي ، يا له کوم بل شي نه وډار شي او مړ شي ، يا له کوم ځای نه را وغورځيږي نو د هغوی د مرګ په فيصله دې بيړه نه کوي صبر د وکوي ترڅو

---

[1] عبدالله الحديثي. الوفاة وعلاماتها
[2] مجلة منار الإسلام، عدد نوفمبر 1998، ص66

دا نښې پکې ښکاره شي او په مرګ یې یقین راشي .

پدې اړه د یو کس د علمي څېړنې خلاصه تاسې ته نقل کوم د حوالې سره هغه وایي چې په امریکا کې په هرو ۲٤ ساعتونو کې یو کس پداسې حالت کې خښیږي چې هغه مړ نه وي یعنې هغه په نشه کې او یا په بې هوښي کې راشي او په هغه باندې د مرګ فیصله وشي ، په برتانیه کې په ۲۲ کلونو کې ۲۱۷٥ کسان په غلط فهمي کې خښ شوي وو پدې معنی چې په ظاهر کې مړه شوي وو په اصل کې لا ژوند پکې پاتې وو په أمستردام بهولندا کې یوي خیریه موسسې کشف کړې وه چې په ۲٥ کلونو کې ۹۹۰ کسان تر وخت مخکې خښ کړل شوي وو یعنې په پوره توګه یې مرګ نه وو واقع شوی .[1]

د مرګ او د مرګ د واقعاتو په اړه په کتابونو کې ډېرې عجیبې خبرې نقل شوي دي لکه یو سړی چې خپل ورور خښ کړو مخکې لدې چې د قبر نور کار یې ختم کړي ورور یې له قبر نه اواز وکولو .[2]

یو مشر ایټالوي سړی چې د ٦۷ کلونو وو او د موټر د ټکر په حادثه کې وفات شوی وو پنځه ورځې ي په منفي ۷ درجې حرارت کې یې په یخچال کې ایښی وو د څه خپلوانو د راتللو انتظار وو چې هغه و ښوریدو او را ژوندی شو له یخچال نه را وویستل شو او څوکلونه بیا ژوندی وو .[3]

په کال ۱۹۱۳ کې یوې مصري جینۍ ځان ته اور واچولو او خلکو فکر وکولو چې دا مړه ده په یوه تخته باندې یې د څو ساعتونو لپاره اچولې

---

[1] د. علي قاسمي. مفهوم الموت في الثقافة العربية، مجلة المنهل، مارس 1998، ص80.

[2] مجلة الفرقان، العدد 103، رجب 1419هـ، ص31.

[3] الشيخ عبدالعزيز بن باز. أحكام الجنائز، مطبعة النرجس، الرياض، 1418هـ

وه چې انتظام ورته وکوي هغه يودم وشورېده او اواز يې وکولو: تبرې يم ........ بيا شفاخانې ته نقل شوه .[1]

ددې خبرو له امله فقهاء كرام فرمايي كله چې د يو چا زړه او نفس ودريږي كه په مرگ كې يې شک وو نو پدې کې څه ممانعت نشته چې ماهر في الفن يعني ډاکټر يې د په سمه توگه چيک کړي چې آيا رښتيا وفات شوى دى او كه نفس پکې شته ترڅو په يقيني توگه د هغه مرگ معلوم شي بيا يې دې په مرگ باندې فيصله وکوي .

## اوه ويشتم حقيقت

د رحمت مرگ

د رحمت مرگ يا په عربي کې ورته موت الرحمة يا موت الشفقة او په انگليسي کې ورته EUTHANASIA ويل کيږي دا هغه مرگ دی چې گمان کيږي چې پدې کې تکليف نشته او په اسانه سره مرگ دی .

موت الرحمة وقد درجت اللغات الأجنبية على تسمية بايوتانازيا أي القتل بدافع الرحمة أو الشفقة .[2]

او په انگليسي کې يې تعريف داسې کوي :

The painless killing of someone who is suffering from a painful and incureable illness.

ترجمه : بې درده وژل د يو چا دي چې هغه له درناکې او بې علاجه بيماري نه ځوريږي .

په بل عبارت د د هغه بيمار مرگ دی چې د هغه د علاج او ښه کېدو تمه نه وي د حقيقي مرگ په تمه پروت وي نو د خپل معالج

[1] الحقائق الطبية في الإسلام، دار القلم، دمشق، 1996م
[2] المعجم الطبي العربي

او ډاکټر نه وغواړي چې دده ژوند ته په اسانه توګه خاتمه ورکړي .[1]

چېرته چې په قانون کې دا مرګ ذکر کیږي هلته په عربي کې ورته موت الرحمة ویل کیږي او تعریف یې داسې کوي :

**وهو فعل أو ممارسة ما يسهل موت الأشخاص الذين يعانون من أمراض مستعصية من شفائها .**[2]

ترجمه : دا داسې یو کار دی چې د هغه کسانو د پاره مرګ اسانه کړي چې د هغوی د شفاء نه امید قطع شوی وي .

عربي د علم الطب ماهرین یې بل تعریف داسې کوي :

**فهو القتل لتخليص مريض لا يرجى شفاؤ ه من آلامه المبرحة التي لا تطاق .**[3]

ترجمه : دا وژنه ده چې هغه بیمار چې د شفاء امید یې نه وي له سختو دردونو څخه چې د هغې برداشت یې په وس کې نه وي خلاص کړي .

ددې مرګ تاریخ او ددې لپاره دا اصطلاح نوې نه ده د افلاطون او سقراط او یوناني حکماوو د زماني نه راغلې ده لکه چې وایې سقراط پخپله زهر خوړلي وو چې له امله یې مړ شو او دده په ګمان له دردونو څخه خلاص شو او په هغه وخت کې به داسې اصطلاح ورته کارول کېده چې مطلب به یې وو (د شرافت د مرګ لپاره خپل تدبیر) یا په عربي کې (التدبير الذاتي للموت بشرف) او په انګریزي طب کې ددې فلسفه تر ROGERBACON (روجيه باكون) پورې رسیږي په انګریزي طب کې دا اول کس وو چې پدې اړه یې حکم وکولو او یو عربي عالم دده خبره داسې نقل کړېده چې ده ویل : **على الأطباء أن يعملوا على إعادة الصحة إلى**

---

[1] د. عبدالوهاب حومد. القتل بدافع الشفقة، عالم الفكر، المجلد 4، 1973م. العدد 3 ص641 وما بعدها، د. هدى قشقوش، القتل بدافع الشفقة، ص6.

[2] أحكام التداوي ص67، د. وجيه زين العابدين، الطبيب المسلم، ص111

[3] مجلة الحقوق، الكويت، 1981م

المرضى وتخفيف آلامهم، ولكن إذا وجدوا أن شفاءهم لا أمل فيه، يجب عليهم أن يهيئوا موتاً هادئاً وسهلاً . [1]

ترجمه : ډاکټران باید بیمار ته د صحت په بېرته ور ګرځولو کې او د هغه د دردونو په سپکولو کې مرسته وکوي لکن چې کله دوی پوه شول چې دده د شفاء امید اوس نشته نو بیا په دوی باندې لا زمه ده چې د هغه لپاره د اسان مرګ انتظام وکوي .

خو دده پدې خبره باندې چا عمل نه کولو او اول چې په انګریزي ملکونو ې پدې پوچې نظریه باندې عمل شروع شو د امریکا په عدالت کې قضیه را پورته شوه چې په کال ۱۸۲۳ میلادي کې یو پلار خپل دری ماشومان قصداً په اوبو کې غرق کړل چې دده په ګمان لدې مرګ نه به دوی ته هېڅ تکلیف نه رسیږي او دوی به راساً جنت ته لاړ شي په ۱۹۱۲ میلادي کال کې یو وکیل خپله ښځه چې په سر کې د زخم له امله نیمه فلجه شوې وه ددې امله مړه کړه چې دده په ګمان ده غوښتل چې له هغه دردونو څخه یې خلاصه کړي چې برداشت یې ددې په وس کې نه وو ، په ۱۹۲۰ میلادي کې یو خاوند خپله ښځه وروسته لدې په زهرو مړه کړه چې دې ترېنه وغوښتل چې داسې وکړي او هغه له دردونو څخه خلاصه کړي ، په ۱۹۲۵میلادي کې په فرانسه کې یوې ښځې خپل هغه خاوند چې په سرطان بیماري باندې مبتلا وو په تمانچې وویشت مړ یې کړو ددې په نظر چې هغه یې له دردونو څخه خلاص کړو . [2]

په ځینې انګریز ملکونو کې په قانون کې ددې مرګ لپاره ځانګړې مادې شته لکه د کلیفورنیا په قانون کې په صراحت سره ښکاره شوي دي چې هرڅوک کولی شي د ځان لپاره د خپل ژوند آخر تعین کړي او هرڅوک کولی شي چې چاته اجازه ورکړي چې ده ته اسانه مرګ ورکړي ..

## د اسلام په مقدس دین کې ناروا دی

خو د اسلام دین چې د ټول عالم لپاره رحمت دی او مبارک دین دی په هېڅ صورت کې د چا د قتل اجازه نه ورکوي او دا د یو چا قتل ګڼي او حرام یې ګڼي او که څوک پخپله دا کار کوي نو اسلام ورته د ځان وژنه وایي چې بیا هم سخت ناروا عمل دی ځکه په انسان کې چې کوم ژوند دی دا یوازې د انسان نه دی پدې کې د الله χ هم حق دی او د انسان هم پکې حق دی او یو انسان که خپل حق چا ته وبښي هم خو د الله χ حق چاته نشي بښلی همدارنګه که په کوم انسان باندې دردونه هرڅو سخت شي هغه ددې عذر نشي کېدلی

---

[1] د. عبدالوهاب حومد. القتل بدافع الشفقة، المقال المذكور ص651 وما بعدها

[2] بحوث في الطب الإسلامي، ص142 – 143

چې لـه املـه يـې څوک د اللهχ پـه حق بـانـدې د تـجاوز روا والـى پـيدا کـړي او تـرڅو پـورې چې پـه انـسان کـې يـو تـنفس ژونـد هم وي د اسلام لـه نـظره يـې علاج مـمکن دى کېداى شي اللهχ ورتـه شفـاء ورکـړي او بـېرتـه جوړ شي د اسلام لـه نـظره د اللهχ پـه قـدرت کـې هېڅ شى نـا مـمکن نـشتـه همدارنـګه کـه نـن پـدې ساعت کـې ددې بـيمـار علاج نـشتـه کېداى شي يـو ساعت وروستـه اللهχددې د علاج انـتظام وکـوي او دا جوړ شي نـو ځکه اسلام ورتـه اجازه نـه ورکـوي .

او اللهχپـه عمـومـي تـوګـه د انـسان وژنـې څخه منـع کـړيـده اللهχ فـرمـايـي :

وَلاَ تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ الله الاَّ بِالْحَقِّ . [1]

تـرجمـه : او مـه وژنـئ تـاسې نـفس هغـه نـفس چې حرام کـړى دى اللهχ (وژل ئـې) مـګر (وژنـئ ئـې) پـه حقـه سره.

پـه بـل ځاى کـې اللهχ فـرمـايـي :

وَمَا كَانَ لِمؤمنٍ أَنْ يَقْتُلَ مؤمنًا إِلاَّ خَطَأً وَمَنْ قَتَلَ مؤمنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مؤمنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ . [2]

تـرجمـه : او نـه ښايـى (يـا نـه دي روا) هېڅ مـؤمـن تـه (يـا نـه دى د مـؤمـن کـار) دا چې مـړ کـړي (بـل) مـؤمـن مـګر پـه خطا سره ، او هر څوک چې مـړ کـړي کـوم مـؤمـن پـه خطا سره نـو (شتـه پـر قـاتـل) آزادول د غاړې (د مـريـي) مـؤمـن او (بـل) ديـت دى سپـارلـى شوى اهل (وارثـانـو) د مقـتـول تـه .

پـه بـل ځاى کـې اللهχ فـرمـايـي :

وَمَنْ يَقْتُلْ مؤمنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاووهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ الله عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا. [3]

تـرجمـه :او هر څوک چې مـړ کـړي کـوم مـؤمـن پـه قـصد سره (او د مسلـمـان دغه قـتـل روا هم و ګـڼـي) نـو جزا د ده دوزخ دى (پـه داسې حـال کـې)چې تـل بـه وي دى (دغه حلال ګـڼـونـکى و قـتـل) بـه هغه

---

[1] سورة الانـعـام آيـة ١٥١
[2] سورة الـنساء آيـة ٩٢
[3] سورة الـنساء آيـة ٩٣

(دوزخ)کې او غضب (قهر) کړی دی اللهχپه ده باندې او لرې کړی دی (اللهχ) دا (قاتل) له خپل رحمت څخه) او تيار کړی دی ده ته عذاب ډير لوی .

اللهχ فرمايي :

وَلاَ تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ إِنَّ الله كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا. [1]

ترجمه : او مه وژنئ تاسې سره ځانونه خپل (يعنی يو بل يا مه کوئ تاسې هغه کار چې ستاسې د هلاکت سبب وی) بېشکه چې اللهχ دی پر تاسې باندې ډير مهربان (د اجر او ثواب په انعام سره).

اللهχ فرمايي :

وَلاَ تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ وَأَحْسِنُوا إِنَّ الله يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ. [2]

ترجمه : او مه غورځوئ ځانونه خپل په هلاکت کې او نيکی کوئ ! بېشکه چې الله دوستي کوي له نېکو کارانو سره (چې ثواب ورکوي دوی ته).

رسول اللهγ فرمايي :

قتل المؤمن أعظم عند الله من زوال الدنيا . [3]

ترجمه : د مؤمن قتل د اللهχپه وړاندې د دنيا له زوال نه لويه خبره ده .

په بل ځای کې اللهχ موږ ته امر کوي چې له الله χ نه مه نا اميده کېږئ اللهχ فرمايي :

وَلاَ تَيْأَسُوا مِنْ رَوْحِ الله انَّهُ لاَ يَيْأَسُ مِنْ رَوْحِ الله الاَّ الْقَوْمُ الْكَافِرُونَ. [4]

---

1 سورة النساء اية ٢٩
2 سورة البقرة آية ١٩٥
3 رواه النسائي
4 سورة يوسف آية ٨٧

ترجمه : او مه نا امیده کیږئ له فیضه د الله χ بېشکه شان دا دی چې نه نا امیده کیږی له فیضه د الله χ څخه مګر قوم کافران (منکران له الله χ او صفاتو د الله χ) .

او که چېرته څوک دا پورتنی قتل وکوي یعني یو بیمار ددې امله مړ کړي چې هغه له هغه دردونو څخه خلاص کړي چې په هغه باندې وي که د هغه په غوښتنه وي یا بې له غوښتنې نو د اسلام له نظره به وربانـدې دا کس قصاص کیږي .[1]

د رسول الله γ په زمانه کې به صحابه کرام M په غزا ګانو کې زخمیان شول په هغه وخت کې چې طب دومره ترقي نه وه کړې نو د هغه زخمونو څخه به سخت تکلیف وو وینه به ئې بهېدله او دوی به الله χ ته وربانـدې صبر کړی وو تردې چې یا به الله χ ورته شفاء ورکړه او یا به یې شهادت ورکړو خو کله هم پدې اړه چا فکر نه کاوه چې مرګ لدې نه اسانه لاره ده او په رښتیا کې په مرګ سره دردنه په قرار کیږي دا انسان ته هسې شیطان په ذهن کې ورکوي چې لدې ساعت نه دې مرګ ښه دی او په حقیقت کې چې په دنیا کې په انسان څومره تکلیف هم وي بیا هم تر مرګ اسانه وي خو انسان مرګ لیدلی نه دی ځکه هغه ورته اسانه ښکاره کیږي .

[1] **التشريع الجنائي الإسلامي، ج1، ص440**

# ماخذونه


1. القرآن الكريم
2. البرهان في علوم القرآن
3. الإتقان في علوم القرآن
4. تفسير القرطبي
5. تفسير ابن كثير
6. تفسير الطبري
7. تفسير المنار
8. صحيح البخاري
9. صحيح مسلم
10. سنن الترمذي
11. سنن النسائي
12. سنن أبي داود
13. سنن ابن ماجه
14. سنن الدارمي
15. سنن الدارقطني
16. شرح النووي على مسلم
17. فتح الباري شرح صحيح البخاري
18. حاشية السندي على ابن ماجه
19. عون المعبود
20. تحفة الأحوذي
21. مرقاة المفاتيح شرح مشكاة المصابيح
22. السيرة النبوية (ابن هشام)
23. كتاب الشفا بتعريف حقوق المصطفى
24. زاد المعاد
25. البداية والنهاية
26. جامع العلوم والحكم

27. سير أعلام النبلاء
28. بداية المجتهد ونهاية المقتصد
29. بيان المختصر شرح مختصر ابن الحاجب
30. بدائع الصنائع في ترتيب الشرائع
31. تحفة المحتاج في شرح المنهاج
32. جمع الوسائل في شرح الشمائل
33. رد المحتار على الدر المختار
34. حلية الأولياء وطبقات الأصفياء
35. فتح القدير
36. البحر الرائق شرح كنز الدقائق
37. الأشباه والنظائر على مذاهب أبي حنيفة النعمان
38. القواعد النورانية الفقهية
39. أنوار البروق في أنواع الفروق
40. مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين
41. الجواب الكافي لمن سأل عن الدواء الشافي
42. موعظة المؤمنين من إحياء علوم الدين
43. القاموس المحيط
44. لسان العرب
45. النهاية في غريب الحديث والأثر
46. مختار الصحاح
47. الحاوي للفتاوي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد γ د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله
پښتو
3. آشيانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګليسي
5. دين يې دام دی ددنيا په لار کې اېښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دين نوی مسلمان
پښتو
9. ډم ډمکو جي او ليکوال
پښتو
10. اديان پشت در
فارسي
11. له دروازې تر شا دينونه
پښتو
12. د انصاف ا و اعتدال لاره
پښتو
13. کفري الفاظ
پښتو

14. کل بچه
فارسي
15. معلومات عمومي فارسي
16. د حج لارښود پښتو
او انگليسي
17. محمد رسول الله γ سيرت اخلاق او پېژندنه
پښتو
18. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه اول
پښتو
19. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه دوهم
پښتو
20. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه دريم
پښتو
21. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه څلرم
پښتو
22. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه پنځم
پښتو
23. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه شپږم
پښتو
24. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه اوم
پښتو
25. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه آتم
پښتو
26. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه نهم
پښتو
27. د اسلامي تاريخ له پاڼو څخه لسم
پښتو
28. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اول
پښتو

29. د فقهي کتابونو له پانړو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي کتابونو له پانړو څخه دریم پښتو
31. د فقهي کتابونو له پانړو څخه څلورم پښتو
32. د فقهي کتابونو له پانړو څخه پنځم پښتو
33. د علم حدیث مطالعه پښتو او انګلیسي
34. د فقهي کتابونو له پانړو څخه شپږم پښتو
35. کلمه طیبة پښتو
36. الدعاء پښتو
37. اللهم عربي، پښتو، انګلسي
38. المسجد پښتو
39. قرآني معلومات لمړی برخه پښتو
40. سلام پښتو
41. د فقهي کتابونو له پانړو څخه اومه برخه پښتو
42. د وخت ا همیت (لمړی برخه) پښتو
43. د وخت ا همیت (دوهمه برخه) پښتو

44. د وخت ا همیت (دریمه برخه) پښتو
45. الحکمة ١ پښتو
46. الحکمة ٢ پښتو
47. الحکمة ٣ پښتو
48. الحکمة ٤ پښتو
49. حتمي سفر (مرګ) ستاسې په لاس کې